## د دریم درس (لومړۍ برخه).

**عنوان:** العودة من السفر.

**مخ:** ۱۱.

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**درسي موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- ددرس متن ولوستلای شي او معنا یې کړي.
- د فعلي جملو معناوې وپیژني.
- فعلي جملې جوړې کړای شي.
- د (ال) حرف په کلماتو سم داخل کړاې شي.

**اضافي معلومات:**

جمله: هغه ده چې له دوو یا زیاتو کلمو څخه جوړه شوې وي او د بیلې او مفیدې معنا لرونکي وي.

لکه: البستان جمیل            یفوز المجتهدُ.

د جملو ډولونه: جمله پر دوه ډوله ده: اسمیه جمله او فعلیه جمله.

اِسمي جمله: هغې جملې ته وایې چې په اَصل کې په اسم شروع شوې وي و یا هغې جملې ته وایې چې لومړۍ برخه یې اسم وي لکه: الطقسُ ممطر. الحدیقة جمیلة. العلم مفید.

فعلیه جمله: هغې جملې ته وایې چې په اَصل کې پر فعل شروع شوې وي او یا هغې جملې ته وایې چې لومړۍ برخه یې فعل وي ، لکه: نجح زید. اِجتهد عبد الله في الدراسة.

**د کلمو معنا :**

العطلةُ: رخصتي. رحبت: ښه راغلاست یې وویل. جامعة: پوهنتون. الأسرةُ: کورنۍ. یعودُ: بیرته راګرځي. بلدهُ: وطن یې. التفوقُ: پورته والی. تذکرةُ السفر: د طیارې ټکټ. الطیران: الوتنه. یستعد: تیاری نیسي. مطار: هوایي میدان.

**د تدریس لارې:** نمونه یې قرائت ، مناقشه ، ځان ته او ډلییز سوال او ځواب.

**د تدریس مرستندویه توکي:** کتاب ، تخته ، تباشیر ، د طیارې او هوایي میدان عکس.

**د لوست جریان:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | - محترم ښوونکی د سلام ، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته ، د تیر لوست او کورنۍ وظیفې ارزونه کوي.<br>- څوک کولی شي ماضي أفعال (کتبَ ، قرأ ، فتحَ ، وجد) پر مضارع او أمر أفعالو واړوي؟<br>د نوي درس د عنوان په اړه زده کوونکو ته ذهنیت ورکوي.<br>- د سفر نه راستنیدو ته په عربي کې څه وایې ؟<br>- ښوونکی د ځواب له موندلو وروسته ، د نوي درس عنوان (العودةُ من السفر) د تختې پر مخ لیکي او د زده کوونکو توجه ورته را اړوي او نوی لوست د لوی الله جل جلاله په نوم سره پیلوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۰<br>دقیقې<br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br><br>۱۰<br>دقیقې | دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی د درس متن په لوړ آواز سره لولي او له زده کوونکــو څخــه غواړي چې خپلو کتابونو ته وګوري او د ده لوست ته غوږ شي.<br>– ښوونکی د دويم ځل لپاره د درس متن لولي او له زده کوونکو سره يې معنا شريکوي ، او بيا په نوبت دريو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي او په لوړ آواز سره د درس متن ولولي ، بيا پنځه تنه نور زده کوونکي غوره کوي او دوه دوه کرښې پرې لولي او هغه پرې معنا کوي.<br>ښوونکی د درس مشکلې کلمې د تختې پر مخ ليکي هغه معنا کوي او لـــه زده کوونکو غواړي چې خپلو کتابچو کې يې وليکي.<br>– محترم ښوونکی د درس د دويم تمرين کلمې زده کوونکو ته وايې او بيا يې معنا کوي ، بيا د (الف) لين کلمې پر تختې ليکي او زده کوونکـــو تـــه لارښوونه کوي چې د الف لين (مرادفې) ورته کلمې په (ب) لين کې ومومې او د (الف) لين مخې ته يې وليکي ، د مثال په ډول:<br>سنة: کال عام: کال.<br>الأخير: وروستنی النهائي: وروستوني.<br>کاملة: کامل ، پوره تامة: کامل ، پوره او بشپړ.<br>أسرة: کورنۍ عائلة: کورنۍ.<br>بيا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د پنسل په واسطه د تمرين مترادفې (ورته) کلمې سره ونښلوي ، او همدا راز کلمې او معناوې يې په کتـــابچو کې وليکي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک کولی شي د درس متن سم ولولي او معنا يې کړي ؟<br>– څوک جمله تعريفولی شي ؟<br>– څوک د جملې ډولونه بيانولی شي ؟<br>– څوک کولی شي د (سنة او أسرة) کلمو مرادفې کلمې ووايې ؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی لومړی تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.<br><br>**د درس پيغام:**<br>– ښوونکی د لوړو زده کړو او د هغې د أهميت په اړه زده کوونکـــو تـــه معلومات ورکوي او د هيواد د ترقې په اړه يې د لوړو زده کړو په أهميـــت پوهوي، او په بهرنيو او کورنيو پوهنتونونو کې يې زده کړو ته هڅوي. | زده کوونکي په چوپتيا سره غوږ نيسي.<br><br><br><br><br><br>زده کوونکي ليکل کوي. |

## دریم درس: دویمه برخه.

**عنوان:** العودة من السفر.

**مخ:** ۱۳ – ۱۴.

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د درس موخې:**

د لومړۍ برخې په دوام.

**اضافي معلومات:**

لومړۍ برخې ته ورشئ.

**د کلمو معنا:**

أكل: ویې خوړ. شرِبَ: ویې څښه. أنا أُحِسُّ بِألم: د درد اِحساس کوم.

**د تدریس لارې:** مناقشه ، سوال او ځواب ، تکرار.

**د تدریس مرستندویه توکي:** کتاب ، تخته ، تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – محترم ښوونکی د سلام ، پوښتنې او ټولګې له برابرولو وروسته ، د کورنۍ وظیفې او تیر لوست ارزونه کوي.<br>ــ څوک کولی شي دا جمله (رحبت الأسرةُ به) معنا کړي؟<br>– ښوونکی د لوست عنوان (العودةُ من السفرِ) د تختې پر مخ لیکي او د زده کوونکو توجه ورته اړوي او نوی لوست د لوي الله جل جلاله په نوم پیلوي. | |
| ۳۰ دقیقې | د لوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی د درس دریم تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي یې ، همدا راز د فعلیه جملو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي او بیا د تمرین اړوندې جملې پر هغوی تکراروي.<br>– ښوونکی د څلورم تمرین یو مثال چې فعلونه له ضمایرو سره نښلوي ، د نمونې په توګه زده کوونکو ته حلوي.<br>د مثال په توګه: أكل: هو أكل ، هي أكلت ، هما أكلا ، هما أكلتا.<br>د تمرین پاتې مثالونه هم پر زده کوونکو پر تختې حلوي.<br>ښوونکی د پنځم تمرین له ورکړل شوي مثال نه چې له مخې یې د ماضي مؤنثه صیغه په جمله کې استعمالول دي ، د تختې پر مخ زده کوونکو ته لیکي: د مثال په ډول:<br>ذهبت فاطمة اِلی السوقِ.<br>بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ورکړل شوي مثال په مطابق پاتې مثالونه هم پر تخته ولیکي. | زده کوونکي پاتې مثالونه لیکي. هو یشرب ، هي شربت ، هما شربا ، هما شربتا.<br>زده کوونکي جملې لیکي.<br>– أكلت مریم الطعام.<br>– شربت زینب الماء.<br>– نظرت أسماء اِلی السبورة.<br>زده کوونکي تمرین په لاندې ډول حلوي.<br>هو یحس بألم. |

| | | |
|---|---|---|
| | – ښوونکی په شپږم تمرین کې (ضمایر) په جملو کې استعمالوي او د تختې پر مخ يې پر زده کوونکو ليکي.<br>– ښوونکی د اووم تمرین کلمې پر تختې لیکي او هغه معنا کوي.<br>او بیا په لوړ آواز سره دغه کلمې لولي او له زده کوونکو غواړي چې د ده تر شا يې تکرار کړي ، همدا راز ځینې کلمې په انفرادي او یوازې ډول هم پر څو زده کوونکو لولي:<br>**د مثال په ډول**<br>جواز السفر: پاسپورټ. رقم الجواز: د پاسپورټ شمیره<br>تأشيرة الخروج: د وتلو ويزه. تأشيرة الدخول: د راتگ ويزه. | هي تحس بألم.<br>نحن نُحِسُ بألم.<br><br>زده کوونکي د دغه تمرين کلمې په خپلوکتابچو کې ليکي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه د لاندې کلمو معنا کول غواړي:<br>قاعة الاستقبال: د استقبالیې صالون.<br>قاعة الانتظار: د تم کیدو ځای. مضيف: کوربه. اِستمارة: فورمه.<br>الاِقلاع: الوتنه. هبوط: ښکته کيدل. الملاح البحري. بيړۍ چلوونکی.<br>ضابط الجوازات: د پاسپورټ موظف ضابط. الحجز: نيول.<br>همدا راز زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دغه کلمې په خپلوکتابچو کې وليکي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی (ا لواجب المنزلي) زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

## لوست: څلورم (لومړی برخه).

**عنوان:** اشارات المرور.

**مخ:** ۱۵

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**دتدریس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د درس متن ولوستلای شي او معنا یې کړای شي.
- هغه فعلیه جمله وپیژني چې فعل یې مضارع وي.
- مفردې کلمې جمع تکسیر ته واړولې شي.
- د وصل همزه په جمله کې وپیژني.

**اضافي معلومات:**

فعلیه جمله هغې جملې ته ویل کیږي چې په اصل کې په ماضي ، مضارع او أمر فعلونو باندي پیل شوي وي ، په دې درس کې به هغه فعلیه جمله وړاندې شي چې په مضارع فعل پیل شوی وي لکه:

أذهب اِلی السوق. أشتري کتاباً. نأکل السمک.

جمع تکسیر: مکسر د مات شوی په معنا ده ، او په اصطلاح کې هغې جمعې ته ویل کیږي چې د مفرد بنه پکې ماته او له منځه تللې وي او په دریو یا ډیرو څیزونو دلالت کوي لکه: رجل – رجال. کتاب: کتب. جمع تکسیر په دوه ډوله ده:

۱ – جمع قلت: په هغه شمېرې دلالت کوي چې له دریو نه کم او له لسوو نه زیات نه وي. لکه: رجل: أُرجل عین: أعین. فتی: فیتة. عنب: أعناب. غذاء: أغذیة..

۲ – د کثرت جمع: هغې جمعې ته ویل کیږې چې پر درې او یا له هغه څخه په زیات عدد دلالت وکړي لکه:

أحمق: حُمُق. أحمر: حُمُر و حمراء. أبیض: بیض.

د وصل همزه: هغې همزې ته ویل کیږې چې د جملې په سر کې تلفظ کیږي ، او د جملې په منځ کې لیکل کیږې خو تلفظ پرې نه کیږې لکه: اِجلس یا رجل. یا رجل اِجلس.

الله تعالی فرمایي: (یا أَبت استأجره اِن خیر من استأجرت القوي الأمین)[1].

**د کلمو معنا:**

مبراة: پنسل تراش. الممحاة: پنسل پاک. المحفظةُ: د کتابونو بکس. الأدوات: وسایل. حافظ: ساتونکی.اِنتبه: متوجه شه. اِشارات المرور: ترافیکي اِشاري.

**د تدریس لارې:** نمونه یې قرائت ، مناقشه ، سوال او ځواب ، ډله ییز ، او ځان ته تکرار.

**د درس مدرستندویه توکي:**

کتاب ، تخته ، تباشیر ، د ترافیکي اشارو مختلف عکسونه.

---

[1]– سورت قصص آیت ( ۲۶ ).

د درس بهیر:

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی د سلام ، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته د تیـــر لوست او کورنۍ دندې ارزونه کوي.<br>– څوک دا کلمات معنا کولی شي: (اِقلاع ، هبوط ، قاعة الاِستقبال).<br>– د نوي درس د عنوان انګیزې پیدا کول.<br>– څوک ویلی شي چې په عربي ژبه کې ترافیکي اشارې ته څه وایي ؟<br>– ښوونکی له ځواب موندلو څخه وروسته د نوي درس عنوان (اشـــارات المرور) په غټ او ښکاره خط د تختې پر مخ لیکي او نوی درس د لوي الله جل جلاله په نامه پیلوي. | ۵ دقیقې<br>مقدمه |
| | د لوست وړاندې کول:<br>ـ ښوونکی د نوي درس متن په لوړ آواز سره لولي او زده کوونکـــو تـــه لارښوونه کوي چې د ده لوست ته غوږ شي ، بیا د درس مشکلې کلمې د تختې پر مخ لیکي او هغه معنا کوي ، او بیا د درس متن د دویم ځل لپـــاره لولي او د زده کوونکو په ګډون یې معنا کوي.<br>ـ ښوونکی څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د درس متن ولولي د هغوی تیروتنې سموي. | ۳۰ |
| زده کوونکي خپلو کتابونو ته ګوري او لوست ته غوږ نیسي. | ـ ښوونکی دوه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او له هغـــوی څخه غواړي چې د درس متن د محاورې (خبرو اترو) په ډول په داسې حال کې تر سره کړي چې یو یې د پلار په رول کې او دویم یې د محمد په رول کې خبرې اترې تر سره کړي ، ښوونکی ورسره مرسته کوي او هڅـــوي یې.<br>– ښوونکی د درس لومړی تمرین له زده کوونکو پوښتي او هغوی ته لارښوونه کوي چې د درس له متن نه په اِستفادې سوالونو ته ځواب ووایې. | |
| زده کوونکي پوښتنو تـــه ځواب وایي. | **ارزونه:**<br>– څوک کولی شي د درس متن سم ولولي؟<br>– څوک کولی شي چې (اِنتبه اِلی اِشارات المرور) جمله معنا کړي.<br>– څوک کولی شي دغه (پښتو جمله (غواړم بازار ته لاړ شم) په عربي وژباړي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی د درس دویم تمرین چې له نامرتبو کلمو څخه د جملو جوړول دي ، زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.<br>**د درس پیغام:**<br>– ښوونکی زده کوونکي په بازار کې نظم او دسپلین ته هڅـــوي ، او لـــه ازدحام نه ډکو سړکونو کې د لارې د تیریدو په ادب یې پوهوي. | ۱۰ دقیقې |

## لوست: څلورم (دویمه برخه).

**عنوان:** اشارات المرور.

**مخ:** ۱۷ – ۲۰

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د درس موخې:**

دلومړۍ برخې پاتې أهداف (موخې):

**اضافي معلومات:**

د وصل همزه په لاندې ځایونو کې راتلای شي:

۱ – په (ال) تعریف کې ، لکه: الولد ، الخریف.

۲ – د فعل أمر ثلاثي په سر کې. لکه: اُکتب ، اُدرس ، اِذهب.

۳ – د خماسي او سداسي فعلونو د ماضي او امر او مصدر حالتونو په سر کې لکه: اِنتفع المتعلم بعلمه انتفاعاً کبیراً و استغفر ربهُ اِستغفاراً.

**۴ – په لاندې نومونو کې:**

اِبن ، ابنة ، اِسم ، امرؤ ، اِمرأة ، اِثنان ، اثنتان.

**د کلمو معنا:**

مدینة: ښار. جید: ښه. اُعبُر: تیر شه. یسمح: اِجازه ورکوي. یضعُ: جوړه وي یې. یصعدُ: پورته ځي. یحصدُ: لو کوي. اِنتبه: ځیر شه. مفترق الطریق: څلور لارې.

د تدریس لارې چارې: نمونه یې لوست ، مناقشه ، سوال او ځواب ، تکرار.

د تدریس مرستندویه توکي: کتاب ، تخته ، تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | – ښوونکی د سلام ، پوښتنې او ټولګې له برابرولو وروسته د تیر درس ارزونه کوي:<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي؟ (حافظ علی سلامتک).<br>دلوست وړاندې کول: | |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکی نوی درس د الله جل جلاله په نامه سره پیلوي او د دریم تمرین یو مثال چې په جملو کې د ځینو کلمو اِستعمال دی د نمونې په توګه حلوي لکه: خالد یذهب اِلی المدرسة.<br>د تمرین پاتې کلمې پر زده کوونکو د تختې پر مخ حلوي ، د دوی غلطې سموي او په دې اړه همکاري ورسره کوي.<br>– ښوونکی د څلورم تمرین کلمې پر زده کوونکو لولي او معناوې یې له دوی سره شریکوي ، بیا دوی ته لارښوونه کوي چې د پنسل په واسطه د لومړۍ لین (الف) کلمې د هغوی له ضد کلمو سره په (ب) لین کې نښلوي. | زده کوونکي جلمې جوړوي:<br>أحمد یقرأ الدرس جیداً.<br>أین تذهبُ یا أخي.<br>أعبر من الشارع.<br><br>زده کوونکي د (الف) لین کلمې د هغوی له ضد سره په (ب) لین کې نښلوي. |

| ۱۰ دقیقې | د مثال په توګه:<br>حركة..........وقوف.<br>تمر.............تقف.<br>يسمحُ.........يمنعُ.<br>– ښوونکی د پنځم تمرين دوه مثالونه چې مضارع فعل له ضماير و سره نښلوي ، زده کوونکو ته د تختې پر مخ ليکي لکه:<br>هو يشرح ، هي تشرح ، هما يشرحان ، هما تشرحان ، هو يصنع ، هــي تصنعُ ، هما يصنعان، هما تصنعان ، او پاتې مثالونه پر زده کوونکو حلوي.<br>– ښوونکی د شپږم تمرين کلمې پر زده کوونکو لولي او يو مثال د نمونې په توګه دوی ته حلوي ، لکه:<br>– اُنظر الى السبورة.<br>او د تمرين پاتې مثالونه پر زده کوونکو کار کوي.<br>– ښوونکی اووم تمرين پر زده کوونکو تکراروي، او د همزې وصل ليکل دوی ته ښايې تر څو د وصل همزې پر ليکلو پوه شي.<br>– ښوونکی اووم تمرين زده کوونکو ته لولي او دوی ته يې معنا کوي او بيا يې پر دوی تکراروي ، همدا راز دوی ته لارښوونه کوي چې د وصل همزې کلمې به ښه کړي.<br>– ښوونکی نهم تمرين چې د لغتونو زيرمه ده زده کوونکو ته د تختې پر مخ ليکي او په لاندې توګه يې معنا کوي.<br>شارع: سرک ، لار. عمود: ستنه ، محطة: هډه. معبر: د تيريدو ځــاى.<br>شرطةُ المرور: ترافيکي پوليس.<br>متجر: د خرڅلاو ځاى. سيارة الاجرة. ټکسي. الرصيف: د پلی د تيريدو لار. طابق: پوړ.<br><br>**ارزونه:**<br>لاندې کلمې معنا کړئ:<br>عمارة: بلاک. الاِسعاف: کومکي موټر. اُمبولانس.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د الواجب المنزلي تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او له دوی غواړي چې د درس په متن کې دغو سوالونو ته ځوابونه ورکړي. | زده کوونکي د فعل امــر صيغې پــه جملــه کــې استعمالوي:<br>اکتب واجبک.<br>انتبه اِلى اِشارات المرور. |
|---|---|---|

## لوست: پنځم (لومړۍ برخه).

**عنوان:** الثعلب و الدجاجةُ.

**مخ:** ۲۱ – ۲۲.

**وخت** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د درس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

– د درس متن ولوستلی شي.

(سین) او (سوف) په مضارع فعل داخل کړای شي.

– د (سین) او (سوف) لرونکو جملو نه تعبیر وکړای شي.

– د قطع همزه وپېژني او د لیکلو طریقه یې زده کړي.

**اضافي معلومات:**

مضارع فعل د زماني له مخې د آینده او حال تر منځ مشترک فعل دی، که وغواړو چې مضارع فعل یوازې د (راتلونکي) معنا ورکړي د (سین) او یا (سوف) له حروفو یې یو سرته راوړو ، لکه.

سأقرأُ دروسي. سوف أُحضر واجباتي.

د (سین) حرف: د راتلوونکی حرف دی چې پر مثبت مضارع فعل داخلیږي او دلنډې راتلونکي معني ورکوي لکه: سأقابلک الیوم – سأذهبُ اِلی السوق.

د (سوف)حرف: د راتلونکي حرف دی چې پر مثبتې مضارع داخلیږي او د لیرې راتلونکي معنا ورکوي ، لکه: سوف تعلمون – سوف اسافر الی باکستان.

د قطع همزه: هغې همزې ته ویل کیږي چې د جملې په سر او منځ کې تلفظ (ویل) کیږي او د لیکلو پر وخت یې دالف پر سر اویا لاندې وړوکي عین (ء) لیکل کیږي لکه:

أکرم یا رجل – یا رجل أکرم.

د قطع همزه په لاندې ځایونو کې راتلای شي:

۱ – د رباعي فعل ماضي ، د امر او مصدر په حالتونو کې لکه:

أکرم أباک اِکراماً حسناً کما أکرمک و أنت صغیر.

۲ – په ټولو مضارعو اُفعالو کې لکه: أنا أدرس في الجامعةِ ، أستغفر ربي کل یوم.

هغه حرفونه چې په همزه پیلیږي لکه: إنّ ، أنّ ، إلاّ ، أما.

۳ – د تعجب او تفضیل په صیغو کې لکه: ما أکرم سمیراً – منیر أجمل من أخیه.

**د کلمو معنا:**

ثعلب: ګیدړ ، رأی و یې لید. دجاجة: چرګه. تتمشی: پل وهي. اِقترب: نژدې شو. الحظیرةُ: قفس. أخذَ: و یې نیوه. ینادي: غږ کوي. صباح الخیر: سهار مو په خیر. أفحص: معاینه کوم. أقیسُ حرارتک: د تودوخې اندازه دې ګورم.

لکني: خو زه. اُفضل: غوره ګڼم. بیدک: ستا په لاس. رجع: بیرته وګرځیده. خائباً: بې اُمیده.

**د تدریس لارې چارې:** نمونه یې لوست ، مناقشه ، ځان ته او ډله ییز تکرار ، سوال او ځواب.

**د تدریس مرستندویه توکې:** کتاب ، تخته ، تباشیر. د امکان په صورت کې تیپ او کېسټ ، د مرغانچې او ګیدړې عکسونه.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښاغلی ښوونکی د سلام ، پوښتنې او ټولګې له برابرولو نه وروسته دتیر لوست او کورنۍ دندې ارزونه کوي:<br>– څوک کولی شي د مضارع فعل (یشرحُ) مؤنث او تثنیه صیغې پر تختــــه ولیکي ؟<br>د نوي درس د انګیزې د پیدا کولو په موخه پوښتنه کوي:<br>ګیدړ او چرګ ته په عربي کې څه وایې ؟ | |
| ۳۰ دقیقې | د لوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی د څواب له موندلو وروسته ، د نوي درس عنوان (الثعلــب و الدجاجةُ) په غټ خط پر تخته لیکي.<br>ښوونکی د نوي درس متن په لوړ آواز سره لولي او له زده کوونکو څخـــه غواړي چې د درس متن ته غوږ شي.<br>– ښوونکی د درس متن د دویم ځل لپاره لولي او له زده کوونکو سره یې په ګډه معنا کوي.<br>– ښوونکی د درس مشکلې کلمې له معنا وو سره په تخته لیکي او له زده کوونکو غواړي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>– وروسته ښوونکی پر څلورو زده کوونکو د درس دوه دوه کرښې لولي ، او د هغوی غلطیانې سموي او هڅوي یې.<br>– ښوونکی د لومړي تمرین پوښتنې له زده کوونکو پوښتي او هغـــوی تـــه لارښوونه کوي چې د درس له متن نه په اِستفادې ورته ځوابونه ومومي. | زده کوونکي د درس مشکل لغات له معناوو ســره پــه کتابچو کې لیکي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي (عرفت الدجاجة مکر الثعلب).<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د درس دویم او دریم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.<br><br>**د درس پیغام:**<br>زده کوونکو ته دا پیغام ورکول کیږي چې ټولنه کــې چلبــاز او دوکـــه کوونکي انسانان و پیژني لکه چې ګیدړ غوښتل چرګه ښکار کړي. | |

## لوست: پنځم (دویمه برخه)

**عنوان:** الثعلب و الدجاجة

**مخ:** ۲۳ – ۲۴

**وقت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:**

د لومړۍ برخې هدفونو مطابق.

**اضافي معلومات:** د لومړۍ برخې مطابق لارښوونې.

**د تدریس لارې چارې:** مناقشه ، ځان ته او په ډله ییزه توګه سوال او ځواب ، تکرار.

**د تدریس مرستندویه توکي:** درسي کتاب ، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښاغلی ښوونکی د سلام ، پوښتنې ، او ټولګي له برابرولو وروسته د تیر لوست او کورنۍ دندې ارزونه کوي:<br>– څوک کولی شي دا جمله معنا کړي ؟<br>(هل خرجت الدجاجة من الحظیرة ؟).<br>دلوست وړاندې کول: | |
| ۳۰ دقیقې | – ښاغلی ښوونکی د مضارع فعل د علامو په هکله روښنایې اچوي او څلورم تمرین ته زده کوونکي متوجه کوي.<br>– ښوونکی د پنځم تمرین د حل لپاره زده کوونکو سره بحث او مناقشه کوي ، هر زده کوونکی چې وتوانیږي چې جمله ووایي هغه د صنف مخې ته راغواړي او د تختې پر مخ یې پرې ولیکي ، بیا نور زده کوونکي هم هڅوي چې له (سین او سوف) سره جملې پر تختې لیکي.<br>– ښوونکی د شپږم تمرین دوه نمونه یې جملې چې ورکړل شوي د تختې پر مخ لیکي بیا له زده کوونکو غواړي چې دې ته ورته دوی جملې له ځانه جوړ کړي او بیا ترینه غواړي چې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښوونکی څلور زده کوونکي د ټولګي مخ ته راغواړي او دوی ته لارښوونه کوي چې اووم تمرین په کتاب کې له ورکړل شوي مثال نه په استفادې سره حل او د تختې پر مخ ولیکي.<br>ښوونکی د دوی غلطي سموي او دوی تشویق او هڅوي.<br>– ښوونکی له زده کوونکو غواړي چې اتم تمرین د تمرین له لارښوونو مطابق په خپلو کتابچو کې ولیکي ، او خپله د دوی د لیکلو څارنه کوي.<br>– ښوونکی د نهم تمرین کلمې داسې معنا کوي. | زده کوونکي د شپږم تمرین هغه جملې چې پر تخته لیکل شوي خپلو کتابچو کې لیکي<br><br>زده کوونکي اووم تمرین داسې حلوي:<br>علمتُ ، عملتَ ، علمتِ ، أكلتُ ، أكلتَ ، أكلتِ.<br>درستُ ، درستَ ، درستِ. |

| | | |
|---|---|---|
| | اِسعاف: لومړنۍ مرستې. البرودة: يخنې. الممرض: نرس. الحقنة: پیچکارې. المستشفى: روغتون.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي ؟<br>(كانت الدجاجةُ في ساحة البيت).<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي ؟ (سوف أذهب اِلى البيت).<br>د (اِسعاف) معنا څه ده ؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې کورنۍ دندې نه علاوه شپږم تمرين هم په خپلو کتابچو کې حل کړي. | ۱۰ دقيقې |

**لوست: شپږم (لومړۍ برخه).**

**مخ: ۲۳ – ۲۴**

**عنوان:** الصداقة.

**وخت: ۴۵** دقیقې (یو درسي ساعت).

**د درس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

– د درس متن ولوستلی شي او معنا یې کړای شي.

– د مبتدأ او خبر معنا وپیژني .

– مبتدأ او خبر په جمله کې اِستعمال کړای شي .

– اِسم فاعل مفرد ، تثنیه ، او جمع صیغو کې گردان وکولای شي.

**اضافي معلومات:**

مبتدأ: هغه مرفوع اِسم دی چې د یو کار حالت او صفت په هغه پورې تړاو لري.

خبر: هغه دی چې د مبتدأ معنا پر هغه بشپړ کیږي لکه:

الله أعلم بحقائق الأمور. علی ذهب ، القمر في وسط السماء.

په دغو مثالونو کې: (الله جل جلاله (علی) او (القمر) مبتدأ واقع شوی او (أعلم) (ذهب) (في وسط السماء) خبر راغلې.

– مبتدأ د جملې په سر کې راځي ، لکه: العلم خیر من المال.

اِسم فاعل: یو مشتق اسم دی چې پر یو چا او هغه څیز دلالت کوي چې د یوکار سر ته رسولو نسبت ورته کیږي.

لکه: کاتب ، جالس ، ناصر ، او داسې نور.

د مثال په ډول (کاتب) اسم فاعل دی، ځکه پر هغه شخص دلالت کوي چې هغه د لیکلو عمل سر ته رسوي.

– اِسم فاعل شپږ صیغې لري چې درې یې د مذکر لپاره او پاتې درې یې د مؤنث لپاره اِستعمالیږي.

کاتب – کاتبان – کاتبون. کاتبة – کاتبتان – کاتبات.

متعلم – متعلمان – متعلمون متعلمة – متعلمتان – متعلمات.

**د کلمو معنا:**

طرف: څنډه. عصفور: مرغۍ. أرنب: سوې. ضفدعة: چونگښه. لطیف الحرکة: نرم تگ. تطیر: الوزې. النقیق: د چونگښې آواز. مواطن: د موندلو ځای. المیاه: اوبه. عندي: ما سره. ما رأیکم: نظر مو پدې اړه څه دی. نتصادق: دوستې کوو. هیا: ژر شئ. أجل: هوکی. تصافح: یو بل ته لاس ورکړل.

**د تدریس لارې:** نمونه یې قرائت. مناقشه. ځان ته سوال او ځواب ، تکرار.

**د درس مرستندویه توکي:** کتاب ، تخته ، تباشیر ، عکسونه.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښاغلی ښوونکی له سلام ، پوښتنې او ټولگې له برابرولو نه وروسته کورنۍ دندې گوري اود تیر درس ارزونه کوي:<br>– څوک دا جمله معنا کولې شي ؟<br>(سوف أذهبُ اِلی البیت). | |

| | | |
|---|---|---|
| | – دوستي ته په عربي کې څه وايي ؟<br>– د نوي درس لپاره زمينه برابروي. | |
| ۳۰ دقيقې | دلوست وړاندې کول:<br>– ښاغلی ښوونکی د ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان چې (الصداقة) دی پر تخته ليکي. زده کوونکي ورته متوجه کوي او نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پيلوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د درس متن په لوړ آواز سره لولي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته وګوري او د ده لوست ته ځير شي.<br>– ښاغلی ښوونکی د دويم ځل لپاره د درس متن لولي او جملې يې معنا کوي ، همدا راز د درس مشکلې کلمې له معناوو سره پر تخته ليکي او د زده کوونکو ګډون غواړي.<br>– ښوونکی د درس متن پر زده کوونکو د محاورې (خبرو اترو) سوال او ځواب په توګه تکراروي چې يو زده کوونکی به د مرغۍ رول او دويم به د سوېې رول تر سره کوي.<br>– ښوونکی د لومړي تمرين سوالونه له زده کوونکو پوښتي او هغوی ته لارښوونه کوي چې د درس له متن نه په اِستفادې يې ځوابونه وموي. | زده کوونکي د درس مشکلې کلمې په خپلو کتابچو کې ليکي. |
| ۱۰ دقيقې | ارزونه:<br>څوک کولی شي د تختې پر مخ دا جمله پوره کړي ؟<br>يا أرنب............جميلة و هادئة.<br>– څوک کولی شي داکلمات (أرنب ، ضفدع ، عصفور) معنا کړي ؟<br><br>کورنۍ دنده:<br>ښوونکی د درس دويم او دريم تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او د حل کولو لارې هم ورته ښايي.<br><br>د درس پيغام:<br>ښوونکی زده کوونکو ته د دوستۍ په اړه معلومات ورکوي، دوستي او همکارۍ ته يې هڅوي ، ځکه د ژوندون د کاميابۍ أساسي سبب او لامل د دوی تر منځ همکاري او دوستي ده. همدا راز د همکارانو او مرستندويانو تر منځ د مسؤوليتونو ويش د دوستۍ او مينې د زياتيدو په معنا تماميږي. | |

## لوست: شپږم (دویمه برخه).

**عنوان:** الصداقة.

**مخ:** ۲۷ – ۲۸

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**موخې:** د لومړۍ برخې په دوام.

**اضافي معلومات:** د لومړۍ برخې په دوام.

**د کلمو معنا:**

شؤون: کارونه.　　فأس: تبر.

**د تدریس لارې:** مناقشه ، سوال او ځواب ، ځان ته او ډله ییز تکرار.

**د تدریس مرستندویه توکي:** کتاب ، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښاغلی ښوونکی د سلام ، پوښتنو او ټولګي لـــه برابرولـــو او کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي:<br>– څوک کولی شي د (الصداقة ، و ما رأیکم) معنا ووایې ؟<br>د نوي لوست د عنوان پیدا کولو پـــه موخـــه پوښـــتنې مطـــرح کوي. | |
| ۳۰ دقیقې | د لوست وړاندې کول:<br>– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او بیا نوی لوست د لوی الله جل جلاله په نوم سره پیلوي او بیا د مبتدأ او خبر په اړه معلومات ورکوي. بیا د درس څلورم تمرین زده کوونکو ته ورکوي بیا د درس څلورم تمرین زده کوونکو ته لـــولي او پـــر هغوی یې تکراروي.<br>– ښاغلی ښوونکی بیا دوه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او هغوی ته لارښوونه کوي چې د تمرین دوه دوه کلمې د تختې پر مخ ولیکي: د مثال په ډول:<br>کاتب – کاتبان – کاتبون　کاتبة – کاتبتان – کاتبات.<br>جالس – جالسان –جالسون　جالسة – جالستان –جالسات<br>– ښاغلی ښوونکی د درس اتم تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي او بیا ورتـــه لارښـــوونه کـــوي چـــې کلمـــې پـــه جمـــع واړوي. | زده کوونکي کلمو لپـــاره مبتدأ جوړوي.<br>الحبل طویل.<br>الجمل کبیر.<br>العصفور صغیر.<br>زده کوونکي کلمـــې پـــه جمع اړوي.<br>فؤوس.<br>کؤوس.<br>رؤوس. |
| ۱۰ دقیقې | – ښوونکی نهم تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي یـــې او ورکړل شوي کلمې پرې تکراروي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه د لاندې کلمو معنا غوښتنه کوي:<br>**الغراب: کارغه: النعامة: فیل مرغ. الببغـــاءُ: طـــوطي. الحمامـــةُ: کونتره. الصقر: باز.**<br>بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې کلمې له معناوو ســــره پـــه کتابچو کې ولیکي.<br><br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی (الواجب المنزلي) زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

## لوست: اووم (لومړۍ برخه).

**عنوان:** توزيع العمل.

**مخ:** ۲۹.

**وقت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**د تدريس موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

– د درس متن ولوستلای شي او معنا يې کړای شي.

– د فاعل معنا و پيژني.

– فاعل په جملو کې اِستعمال کړای شي.

– همزه په کلمو کې سمه وليکلی شي.

**اضافي معلومات:**

– فاعل: هغه مرفوع اسم دی چې له فعل نه وروسته واقع کيږي او د فعل پيښيدل پر هغه پورې تړاو لري.

د فاعل حکم: فاعل لازما مرفوع واقع کيږي او اکثر حالاتو کې له فعل نه وروسته واقع کيږي.

فاعل په کلام کې يا اِسم ظاهر وي لکه: نجح زيد. نجحت فاطمةُ. او يا به ضمير مستتر وي لکه: زيد نجح (هو).

په دغو ورستيو مثالونو کې فاعل ضمير مستتر (هو) او (هي) دی او په لومړيو دوو مثالونو کې فاعل اِسم ظاهر دی (زيد) او (فاطمة).

د همزه ليکل: همزه کله د کلمې په سرکې راځي، لکه: أحمد ، اِکرام ، أمر د حرکت په شکل باندې ليکل کيږي. لکه:

د ضمې حرکت په الف راځي (أ) لکه: سأل – يسأل.

د کسرې حرکت په (يا) ليکل کيږي (ئ) لکه: يئس ، ييئس.

– کله چې همزه د کلمې په آخر کې واقع کيږي. لکه جزء. ضوء .

– کله چې همزه د کلمې په آخر کې واقع شي او ما قبل اخير يې متحرک وي ، د ما قبل اخير حرف پر سر ليکل کيږي ، لکه: جِرُءَ ، يقرأ ، قرئ.

او که چيرې مخکې له همزې صحيح حرف او يا ساکن وي د الف پر سر ليکل کيږي ،لکه نشأة.

**د کلمو معنا:**

المشهدُ: ننداړتون. نوزع: ويشوويې. کل واحد: هر يو. يقوم بعمل: کار تر سره کوي. يقدر: توانيږي. سأحضرُ: راوړم يې. تأتين بالماء: اوبه راوړې. حرکت: ويې خوځاوه. تنظمين: برابروي يې. اِنتظمت: برابر شو.

**د تدريس لارې:** نمونه يې قرائت ، سوال او ځواب ، ځان ته او ډله ييز ، تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکي:** کتاب ، تخته ، تباشير ، ټايپ او کېښت د اِمکان په صورت کې.

د درس بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښاغلی ښوونکی د سلام ، پوښتنو او ټولګي له برابرولو وروسته د تیر لوست او کورنۍ دندې ارزونه کوي:<br>– څوک کولی شي د دغو کلمو جمع پر تخته ولیکي ؟.<br>(فأس ، كأس ، شأن ، رأس).<br>– د نوي درس د عنوان په اړه د أنګیزې پیدا کول.<br>– د کار ویشلو ته په عربي کې څه وایې ؟<br>– ښاغلی ښوونکی د ځواب له موندلو وروسته د نوې لوست عنوان (توزيع العمل) د تختې پر مخ لیکي. | زده کوونکي خپلو کتابونو ته ګورې او نوي درس لپاره ښوونکي ته غوږ نیسي. |
| ۳۰ دقیقې | د لوست وړاندې کول:<br>بیا د نوي درس متن چې د محاورې (خبرو اترو) په توګه دی زده کوونکو ته لولي او د درس سختې کلمې او ځینې جملې ورته معنا کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی بیا د ټولګې شپږو تنو ته وظیفه ورکوي چې په نوبت درې درې تنه د کتاب محاوره ولولي.<br>– ښوونکی د لومړي تمرین پوښتنې له زده کوونکو پوښتې او هغوی ته لارښوونه کوي چې د درس له متن نه په اِستفادې ورته ځوابونه ووایې. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک د درس متن سم لوستلی شي ؟<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي ؟<br>(حركت الأرنبُ رأسها و سألت: و ما عملي أنا ؟<br>– څوک دا کلمې په عربې معنا کولی شي.<br>(مرغۍ ، سوی ، چونګښه) ؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دویم او دریم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او یو یو مثال ورته حلوي. | |

## لوست: اووم (دویمه برخه).

**عنوان:** توزیع العمل.

**مخ:** ۳۱ – ۳۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې:** د لومړۍ برخې أهداف.

**اضافي معلومات:** د تیر لوست لارښوونې.

**د کلمو معنا:**

تعال: راشه. اللبن: شیدې. مکافأة: جایزه او اِنعام. کأس: گیلاس.

**د تدریس لارې چارې:** مناقشه ، ځان ته سوال او ځواب.

**د تدریس مرستندویه توکې:** کتاب ، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښوونکی دسلام ، پوښتنې او تولگي له برابرولو وروسته د کـــورنۍ دندې او تیر درس ارزونه کوي:<br>– څوک د تیر درس متن لوست او معنا کولی شي ؟<br>– ښوونکی زده کوونکي نوي درس ته ځیروي او د لوی الله جل جلاله په نامه درس پیلوي.<br>د لوست وړاندې کول:<br>ښاغلی ښوونکی د فعل او فاعل په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي او د درس څلورم تمرین چې په ترڅ کې یې زده کوونکي په جملو کې فاعل وپیژني ، دوی ته لولي او پر دوی یې تکراروي تر څو په جملو کې فعل او فاعل و پیژني او فرق یې وکولای شي.<br>ښاغلی ښوونکی پنځم تمرین چې هدف یې په جملو کې د فاعل پیژندل دي د تختې پر مخ لیکي.<br>بیا یې لولي او معنا کوي یې او پر زده کوونکو یې هـــم تکـــراروي او لارښوونه ورته کوي چې د اِستعمال شویو جملو لاندې کرښــــه کـــش کړي ، د مثال په توگه: شرب محمد اللبن<br>(شرب) فعل او (محمد) فاعل.<br>کتب شاکر الرسالة (کتب) فعل او (شاکر) فاعل.<br>ښوونکی شپږم تمرین د ورکړل شوی مثال له مخې پـــر زده کوونکـــو حلوي ، او دوی ته لارښوونه کوي چې د مثال له مخې یې لــــه ځانــــه جملې جوړې کړي.خو باید د ښوونکي مرسته او هڅونه ورسره مل وي.<br>– ښاغلی ښوونکی د درس اووم تمرین پر دوو زده کوونکو د تختې پر مخ لیکي او له دوو نورو زده کوونکو غواړي چې د تمرین خالي ځایونه | ښوونکی تمرین په مناسبو کلمو |

| | | |
|---|---|---|
| | د ورکړل شویو کلماتو له مخې ډک کړي ، بیا ورته لاربنوونه کــوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>– ښوونکی په اتم تمرین کې له زده کوونکو غواړي چې د سمو کلمو پر سر چې اِملاء سموي صحیح علامه او کومې چې غلــط دي غلطــه کیږدي.<br>– ښاغلی ښوونکی دنهم تمرین د لغاتو په معنا کولو سره ارزوي:<br>البقر:غوا. الثور: غوایي. الجاموس: میخه. الحمار: خر<br>الغنم: رمه. الماعز. بزه. الجحش: کوتی. الحمل: د پسه بچـــی (وری)<br>الجمل: اوښ. الکلب: سپی.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د (الواجب المنزلي) تمرین زده کوونکو تــه کـــورنۍ دنـــده ورکوي او له دوی غواړي چې د درس له متن نه په اِستفادې سوالونو ته ځواب ورکړي. | ډکوي:<br>هذه فكرة جيدة.<br>هذه مكتبة كبيرة.<br>هذه سيارة جميلة.<br>هذه كلمة طيبة. |

## **لوست: اتم (لومړی برخه).**

**عنوان:** حسد الغراب.

**مخ: ۳۳ – ۳۴**

**وخت ۴۵** دقیقې (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

– د درس متن سم ولوستلای شي.

– مستتر ضمیر و پیژني.

– فعل او فاعل په جملو کې اِستعمال کړای شي.

– د مضارع فعل په مختلفو ډولونو کې گردان او تکرار کړي.

– علامه د تعجب (!) وپیژني.

**اضافي معلومات:**

ضمیر: هغه کلمې ته وایې چې د اِسم پر ځای راوړل کیږې او د اِسم د بې ځایه تکرار په موخې کارول کیږي او یا ضمیر هغې کلمې ته وایې چې متکلم ، مخاطب ، او غایب لپاره اېښودل شوي وي ، لکه: أنا ، أنت ، هو.

– ضمیرونه پر دوه ډوله دي: بارز (ښکاره) ضمایر او مستتر (پټ) ضمایر.

۱ – مستتر ضمیرونه: هغه ضمیرونو ته وایې چې په لوست او لیکلو کې نه ښکاري لکه: أکتبُ: د دې فعل فاعل مستتر یعنې پټ واقع شوي چې مراد ورڅخه (أنا) دی.

نکتبُ: د دې فعل فاعل یې مستتر ضمیر (نحنُ) دی.

– اکتبْ: دلته مستتر ضمیر (فاعل) په تقدیر (أنت سره واقع شوی.

**د کلمو معنا:**

شَعَرَ: اِحساس یې کړ. وحید: یوازې. الغراب: کارغه. النهار: ورځ. تتهادی: مزل کوي. سأغیر: بدلون به ورکړم. أسرع: چلاکتیا یې وکړه. في نعیم: په ناز او نعمت کې. یشمُّ: بویوي یې. النقي: پاک. تنزه: تفریح کوي.

سجینة: بندې: ما أسعدني: څومره نیک بخته یم.

**د تدریس لارې:** نمونه یې لوست مناقشه ، ځان ته او ډلییز سوال او ځواب.

**د تدریس مرستندویه توکي:** کتاب ، تباشیر ، او د اِمکان په صورت کې ټایپ او کیسټ.

**د تدریس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | – ښاغلی ښوونکی د سلام، پوښتنې او تولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک دا جمله (تعال نذهب اِلی الحدیقةِ) معنا کولای شي؟<br>د نوي درس په اړه انګیزه پیدا کوي.<br>– ښاغلی ښوونکی د ځواب له موندلو وروسته د نوي درس عنوان (حسد الغراب) په غټ خط د تختې پر مخ لیکي او نوی درس د لـــوی الله جـــل جلاله په نوم سره پیلوي.<br>دلوست وړاندې کول: | |
| ۳۰ دقیقې | –-ښاغلی ښوونکی د نوي درس متن زده کوونکو ته لولي او بیا یې پر زده کوونکو د محاورې (خبرو اترو) په ډول پر دوی تکراروي ، غلطي یې ورته سموي او هڅوي یې.<br>بیا د دویم ځل لپاره د درس متن لولي او معنا کوي یـــې ، همداســـي زده کوونکو ته هم وظیفه ورکوي چې یو ځل بیا د درس متن په چوپتیا ســـره ولولي ، مشکلې کلمې ورځینې نوټ کوي ، ښوونکی سختې کلمـــې دوی ته معنا کوي او له زده کوونکو غواړي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>– –ښاغلی ښوونکی دوو زده کوونکو ته وظیفه ورکوي چې د درس دویم تمرین پر تخته ولیکي ، بیا له دریو نورو زده کوونکو نه غواړي چې دتمرین له مثال نه په اِستفادې له ورکړل شویو کلمو څخه تش ځایونه ډک کړي.<br>– ښوونکی دِ لومړي تمرین پوښتنې له زده کوونکو پوښـــتې او دوی تـــه لارښوونه کوي چې د درس له متن نه په اِستفادې ورته ځوابونه وومې.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د دې کلمو معنا کولی شي (نائمة ، غارقة) ؟<br>– څوک دا جملې معنا کولی شي ؟<br>(فرح الغراب و نعق).<br>(ماذا قال الغراب للأرنبِ).<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د درس دریم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ وظیفه ورکوي ، او له هغوی غواړي چې د درس متن نه په استفادې له ګډوډو کلمو سمې جملې جوړې کړي.<br>**د درس پیغام:**<br>زده کوونکو ته باید د حسد او کینې له بدو اغیزو نه معلومات ورکړل شي ، دا چې کینه او حسد انسان دې ته اړ باسي چې د مقابل لوري ته د زیان رسولو هغه هر تخریب او وراني ته لاس واچوي ، نو ځکه باید له حسد او کینې نه ځان لیرې وساتو. | |

**لوست: اتم (دويمه برخه).**

**عنوان:** حسد الغراب.

**مخ:** ۳۵ – ۳٦

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**د تدريس موخې:** د لومړى برخې هدفونه.

**اضافي معلومات:**

هر كله چې په كومه جمله كې (!). علامه وګورو نو دا خبره به مومو چې په جمله كې به يا ندا (غږ) يا تعجب او يا هم ارمان او درد ښكاره كول مطلب وي. كه وغواړو چې په ښكاره او يا غير ښكاره ډول چا ته غږ وكړو نو بايد د ندا علامه يې مخ كې كيږدو ، او كه له كوم شيز تعجب، يا افسوس او ارمان كوو نو هم بايد دغه علامه وكاږو. د دغه درس په متن كې ډيرې داسې جملې كارول شوي چې د تعجب معنا وركوي.

**د كلمو معناوي.**

البغضُ: بد ليدل. النميمةُ: چغلي. النزاع: اِختلاف. الشكوى: شكايت كول.

**د تدريس لارې چارې:** مناقشه ، ځانه ته او ډله ييز سوال او ځواب.

**د تدريس مرستندويه توكي:** كتاب ، تخته ، او تباشير.

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونكي فعاليتونه | د زده كوونكو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې<br>مقدمه | – ښاغلى ښوونكى د سلام ، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، دكورنى دندې له كتلو وروسته د تير لوست ارزونه كوي:<br>– څوک د تير درس متن لوستلاى او معنا كولى شي ؟<br>– ښاغلى ښوونكى د نوي لوست د عنوان د پيدا كولو په موخه پوښتنې مطرح كوي. | |
| ۳۰ دقيقې | دلوست وړاندې كول:<br>– ښاغلى ښوونكى د څلورم تمرين د وركړل شوي مثال نه په اِستفادې سره د مضارع فعل د مخاطبو صيغو دوه مثاله پر تخته ليكي:<br>۱ – تسمع ، تسمعان تسمعون تسمعين.<br>تجلسُ تجلسين تجلسان تجلسون.<br>نور مثالونه هم د تختې پر مخ پر زده كوونكو حلوي.<br>– ښاغلى ښوونكى د تعجب يا ندايې په اړه زده كوونكو ته معلومات وركوي او معنا كوي يې:<br>۱ – د دوى ژوندون څومره ښكلى دى !.<br>۲ – څومره خوښيږم چې كامياب شم !.<br>ښوونكى درى تعجبې جملې پر تخته ليكي: لكه:<br>ما أحسن أخلاقه !.<br>ما أحسن خالداً. | زده كوونكي دمضارع مخاطبې صيغې ګردان كوي:<br>تكتب. تكتبين. تكتبان. تكتبون. تكتبن.<br>تفهم. تفهمين. تفهمان. تفهمون. تفهمن. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | محترم ښوونکی د اووم تمرین کلمې پر تخته لیکي او معنا کوي يې ، بیا يې زده کوونکو ته په لوړ آواز لولي تر څو زده کوونکي يې تر شا تکرار کړي.<br>وروسته یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته غواړي له هغه څخه غوښتنه کوي چې کلمې په لوړ آواز ولولي تر څو ملګري يې هم تر شا تکرار کړي. د مثال په ډول.<br><br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه د لاندې کلمو معنا کول غواړي:<br>البغضُ: بدي. النمیمةُ: چغلي.<br>الشکوی: شکایت. النزاع: کشمکش او لانجې.<br>کورنۍ دنده:<br>ښوونکی (الواجب المنزلي) تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي چې په جملو کې د کلمو اِستعمال ده ، او یوه کلمه د نمونې په توګه دوی تـــه حلوي. | زده کوونکي د کلمو معنا په پښتو وايي. |

## نهم درس(لومړی برخه)

**عنوان:** إعادة توزيع العمل

**مخ:** ۳۷-۳۸

**وخت:** ۴۵ دقيقې(يودرسي ساعت)

**د تدريس موخې:** زده‌کوونکي بايد:

د درس متن سم ولوستلای شي.

د مفعول به په معنا سم پوه شي.

مفعول به په جمله کې استعمال کړای شي.

ماضي افعال مضارع ته واړولې شي.

**اضافي معلومات:**

**مفعول به:** هغه لفظ دی چې فاعل پرې واقع شوی وي، لکه:

قرأ محمد الكتاب أكل محمد التفاح

په لومړی مثال کې محمد فاعل واقع شو او الكتاب مفعول به چې د قرأ فعل ورباندې واقع شوی دي، او په دويم مثال کې محمد فاعل التفاح مفعول به واقع شوی، ځکه د أكل فعل پرې واقع شوی.

- مضارع فعل له ماضي نه د مضارع حروفو(ا-ن-ی-ت) په زياتولو جوړېږي، لکه:

ضرب: أضربُ نضربُ يضربُ تضربُ

كتب: أكتبُ نكتب يكتب تكتب

**د کلمو معنا:**

جوع: ولږه عطش: تنده إعادة توزيع العمل: د کار له سره بيا وېش.

**د تدريس لارې چارې:** نمونه يي لوست، سوال او ځواب يو کسيز او ډله‌ييز تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير....

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | ـ ښوونکی د سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته د تېر درس او کورنۍ دندې ارزونه کوي. | |
| ۳۰ دقيقې | دلوست وړاندې کول:<br>ـ څوک کولای شي د تعجبي جملو دوه مثالونه وړاندې کړي.<br>ـ څوک کولای شي د(تصنع) د فعل مخاطبي صيغې ووايي؟<br>ـښوونکی د نوي درس عنوان(إعاده توزيع العمل) په خپل خط د تختې پر مخ ليکي، زده‌کوونکي لوست ته متوجه کوي. په لوړ آواز سره درس لولي او پر دوی يې هم تکراروي. | زده‌کوونکي پوښتنې جوړي.<br>ـ هل وافقتنا علي التقسيم الجديد؟<br>ـ من جاءت بالطعام؟<br>ـ ماذاكان عمل الضفدعة فى التقسيم الجديد؟<br>ما ذا اقال الجميع؟ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰<br>دقیقې | – بیا د دویم ځل لپاره د درس متن لولي او زده‌کوونکي ته یې معنا کوي، همدا راز د محاورې(خبرو اترو) په ترڅ کې هم درس پر زده‌کوونکو لولي.<br>ـ ښوونکی د دویم تمرین یو مثال چې ځوابونو ته پوښتنې جوړول دي د نمونې په توګه زده‌کوونکو ته حلوي، لکه:<br>من‌تقوم بعمل البیت؟<br>اوپاتې پوښتنې زده‌کوونکو باندې حل کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>ښوونکی د درس لومړی تمرین د ارزونې په توګه له زده‌کوونکو پوښتي:<br>ـ هل أعاد الأصدقاء توزیع العمل؟<br>ـ ماذا کان عمل العصفور الجدید؟<br>ـ هل نجحت الأرنب فی عملها الجدید؟<br>ـ قل بماذا اتفق الأصدقاء الثلاثة؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دریم تمرین چې د جملو بشپړول دي زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ورکړل شویو کلمو نه په استفادې جملې بشپړې کړي.<br><br>**د درس پیغام:**<br>زده کوونکو د حسد او کینې د زیان په اړه معلومات ورکول کېږئ، ځکه چې حسد او کینه د اختلاف، جنګ او جګړې رامل ګرځي. | |

## نهم درس(دویمه برخه)

**عنوان:** إعادة توزيع العمل

**مخ:** ۳۹-۴۲

**وخت:** ۴۵ دقيقې(يودرسي ساعت)

**د تدريس موخې:** زده‌کوونکي بايد:

- د درس متن سم ولوستلای شي.
- د مفعول به په معنا پوه شي.
- مفعول به په جمله کې استعمال کړای شي.
- ماضي فعلونه مضارع ته واړولې شي.

اضافي معلومات: د لومړۍ برخې موخې دې په پام کې ونيول شي.

**د کلمو معنا:**

**تعد:** تياری نيسي. وزع: ويې وېشه. مضی: تېر شو.

**د تدريس لارې چارې:** نمونه يي لوست، سوال او ځواب يو کسيز او ډله‌ييز تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير....

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۱۰ دقيقې مقدمه | ـ ښوونکی د سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو ، د کورنۍ دندې له کتلووروسته د تېر درس اورزونه کوي:<br>څوک دا جمله (حاول العصفور أن يأتي بالماء فلم يقدر) ترجمه کولای شي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | د لوست وړاندې کول:<br>ـ ښوونکی درې تنه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغــواړي اود څلورم تمرين متن چې له ګډوډوکلمو څخه جوړ شوی دی، د تختې پرمخ پرې ليکي، بيا له شپږو نورو زده‌کوونکو غواړي چې هر يو په نوبت د تمرين له ګډوډو کلمو څخه سمې جملې جوړې کړي.<br>ـ ښوونکی د دوی تېروتنې اصلاح کوي.<br>ـ ښوونکی زده‌کوونکو ته لومړی د مفعول‌به پـــه اړه معلومـــات ورکوي او بيا د شپږم تمرين پنځه جملې پر پنځو تنو زده‌کوونکو د تختې پر مخ ليکي. بيا پنځه تنه نور زده‌کوونکي د تختې مخې تـــه راغواړي چې هر يو په نوبت سره د مفعول‌به لاندې خط‌کش کړي.<br>ښوونکی ددوی تېروتنې اصلاح کوي.<br>ـ ښوونکی نهم تمرين زه‌کوونکو ته معنا کوي او پر تخته يې ليکي او بيا له هغوی غواړي چې په خپلو کتابچو کې يې وليکي. | ـ پاتې زده‌کوونکي ترتيب شوي جملې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br><br>ـ زده‌کوونکي د مفعول بـــه کلمـــاتو لاندې خط کشوي:<br>التلميذ اللبن<br>الکتب رسالة<br>النصيحة |

| | | |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي.<br>**ــ د کلماتو معناوې بیان کړي؟ « الموقد، المطبخ، الأوانی» .**<br>**ــ دغه کلمات په عربې کې وایي ؟ « پاکوالي، پخول او اور».**<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده‌کوونکي د ورکړل شوی کورنۍ دندې پــه توگــه (الواجــب المنزلی) اووم تمرین په خپلو کتابچو کې حل کوي. | ۱۰<br>دقیقې |

## لسم لوست(لومړی برخه)

**عنوان:** المعلم

**مخ:** ۴۳-۴۴

**وخت:** ۴۵ دقيقې(يودرسي ساعت)

**د تدريس موخې:** زده‌کوونکي بايد:

- د درس متن سم ولوستلای شي.
- هغه ضماير چې مضاف اليه واقع کېږي وپېژني.
- مترادفې کلمې په جملو کې وپېژني.

**اضافي معلومات:**

**د کلمو معنا:**

| | | |
|---|---|---|
| المعلم: ښوونکی | کاد: نژدی وه | بجهده: دده په کوښښ |
| مکانة: ځای | قم: پورته شه | وفه: پوره يې ورته ورکړه |
| التبجيل: درناوی | ننجح: بريالی شو | الرياضة: سپورت |
| کرةالطائرة: د واليبال توپ | لانضيع: نه يې ضايع کوو. | أطال الله: الله دې اوږد کړي! |

**د تدريس لارې چارې:** نمونه‌يي لوست، سوال او ځواب يو کسيز او ډله‌ييز تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکې:** کتاب، تخته، تباشير....

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | ـ ښاغلی ښوونکی د سلام، پوښتنې، تولګي له برابرولو، دکورنی دندې له کتلو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي:<br>- څوک په دې جمله کې مفعول به په نښه کولای شي؟<br>(سمعت البنت النصيحة).<br>ـ ښاغلی ښوونکی د نوي درس په اړه د انګېزې پيدا کولو لپاره پوښتنې مطرح کوي: | |
| ۳۰ دقيقې | ـ څوک کولای شي چې ووايي ښوونکي ته په عربي ژبه کې څه وايي؟<br>**د لوست وړاندې کول:**<br>ـ ښاغلی ښوونکی له ځواب موندلو څخه وروسته د نوي درس عنوان المعلم د تختې پر مخ ليکي، درس په لوړ آواز سره لولي اوهغه جملې او عبارتونه چې زده‌کوونکي په کې مشکل لري د تختې پرمخ ليکي، بيا له زده کوونکو څخه غواړي چې د درس متن په چوپتيا سره ولولي.<br>- ښاغلی ښوونکی له پنځو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې په | ـ زده‌کوونکي کتاب ته ګوري او په چوپتيا سره درس لولي. |

| | | |
|---|---|---|
| <br><br><br><br><br><br><br><br><br>۱۰<br>دقیقې | نوبت سره درس تکرار کړي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی دویم تمرین پر دوو زده‌کوونکو د تختې پرمخ لیکي، بیا څلورو زده‌کوونکو ته وار ورکوي تر څو په نوبت سره جملې ولولي او سمې جملې له غلطو جملو څخه جلا کړي ښوونکی دوی هڅوي او تېروتنې یې سموي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی پنځه تنه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او له هغوی غواړي چې د څلورم تمرین کلمې جمعه او د تختې پر مخ یې ولیکي، ښوونکی د دوی تېروتنې سموي.<br><br>**ارزونه:**<br>ـ څوک د (نوع) کلمې جمعه کولای شي؟<br>ـ څوک لاندې جمله معنا کولای شي.<br>(ثم نرجع الی الفصل ولا نضیع وقتنا)<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د درس لومړی تمرین زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

## لسم لوست(دویمه برخه)

**عنوان:** المعلم

**مخ:** ۴۶-۴۸

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یودرسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده‌کوونکي باید:

- هغه ضمیرونه چې مفعول‌به واقع کېږي سم وپېژني.
- مضارع فعلونه په جملو کې استعمال کړای شي.
- ماضي فعلونه پر مضارع فعلونو بدل کړای شي.

**اضافي معلومات:**

د لومړۍ برخې پاتې موخې(هدفونه) باید په پام کې ونیول شي.

**د کلمو معنا:**

**تعد:** تیاری نیسي  وزع: ویې وېشه  مضی: تېر شو

**د تدریس لارې چارې:** مناشه، تکرار، سوال او ځواب

**د تدریس مرستندویه توکې:** کتاب، تخته، تباشیر....

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | ـ ښاغلی ښوونکی د سلام، پوښتنې، ټولګي له برابرولو، دکورنۍ دندې له کتلو وروسته دتیر لوست ارزونه کوي: <br> ـ څوک دا جمله معنا کولای شي: | |
| ۳۰ دقیقې | (ثم نرجع الی الفصل ولا نضیع و قتنا) <br> **د لوست وړاندې کول:** <br> – ښاغلی ښوونکی په څلورم تمرین کې چې د مفردو کلمو جمع کول دي زده‌کوونکو سره په څېړنه نیسي، بیا له زده‌کوونکو غواړي چې په خپلو کتابچو کې ولیکي. <br> ـ ښاغلی ښوونکی پنځم تمرین پر یو تن زده‌کوونکي د تختې پرمخ لیکي بیا درې تنه زده‌کوونکي په نوبت سره غواړي تر څو په جمله کې مفعول به د خط په وسیله په نښه کړي، پاتې زده‌کوونکي د تمرین حل په خپلو کتابچو کې لیکي. <br> ـ ښاغلی ښوونکی شپږم تمرین د تختې پر مخ لیکي، بیا څلور زده کوونکي په نوبت سره د ټولګي مخې ته راغواړي او هر یو د | ـ زده‌کوونکي د څلورم تمرین د کلمو جمع کول دي، په خپلو کتابچو کې لیکي. <br> ـ زده‌کوونکي تمرین حلوي: <br> ـ المعلم یربینا <br> ـ المعلم یساعدنا <br> ـ المعلم یعلمنا |

| | | |
|---|---|---|
| | ورکړل شوو فعلونو له نمونې نه په استفادې جملې جوړوي.<br>ــ ښاغلی ښوونکی اتم تمرین پر دوو زده‌کوونکو د تختې پرمخ لیکي، او له څلورو نورو زده‌کوونکو څخه غواړي چې له مضارع ورکړل شوو فعلونو ماضي جوړ کړي.<br>ــ ښاغلی ښوونکی د قوسونو د علامو او د هغې د استعمال په اړه زده‌کوونکو ته لازمې لارښوونې کوي بیا د اتم تمرین له جملو نه دوی ته مثالونه راوړي تر څو ښه پوه شي. | ــ زده‌کوونکي تمرین حلوي:<br>ماضي مضارع<br>لعبنا ننجح<br>درسنا ندرس<br>کتبنا نکتب |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>ــ ښوونکی د لسم تمرین دکلمو معنا له زده کوونکو څخه غواړي.<br>المربی: روزونکی الاختبارات: آزموینې<br>الفنون: هنرونه فناء المدرسه: د ښوونځي حویلي<br>غرفة المدرسین: د ښوونکو اتاق<br>المعمل: لابراتوار<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ــ ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې له (الواجب المنزلی) څخه سر بیره اووم تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

## يوولسم لوست (لومړی برخه)

**عنوان:** المهن

**مخ:** ۴۶–۴۸

**وخت:** ۴۵ دقيقې(يودرسي ساعت)

د تدريس موخې: زده‌کوونکي بايد:

- د درس متن ولوستلای شي او معنا يې کړي.
- د مضارع نصب د (أن) په واسطه وپېژني.
- مضارع مفرد غايب فعل د مضارع متکلم فعل ته واړولې شي.
- د حذف علامې وپېژني.

**اضافي معلومات:**

(أن): د نصب له حرفونو څخه دی، چې پر مضارع داخلېږي او نصب ورته ورکوي؛ لکه: أريد أن أذهب إلى المدرسه.
أريد أن أكون معلما. أنا أحب أن أصبح كاتباً.

- د مضارع فعل په اصل کې مرفوع وي، خو کله چې پرې د نصب حرفونه(آن– لن, کي، اذن) سر کې داخل شو نو ضمه يې بيا پر نصب بدلېږي؛ لکه: يذهبُ، يأكل– أن يأكلَ، أدرس.

د مضارع فعل د نصب حرفونه عبارت دي؛ له:

أن: دا چې     لن: هيڅ کله نه     کي: ددې لپاره     اذن: په دې وخت کې.

**د کلمو معنا:**

مهن: کسبونه     لوسحمت: مهرباني، که اجازه مو وي.     يصلح: سموي يې

تحفر: کندې باسي.     الطباخ: پخوونکی     المحامي: وکيل

**د تدريس لارې چارې:** مناقشه، نمونه‌يي لوست، محاوره(خبرې اترې) ډله‌ييز تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکې:** کتاب، تخته، تباشير، د کاک کاغذ چې محاوره پرې ليکل شوې وي....

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | ـ ښوونکی د سلام، پوښتنې او تولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېر درس ارزونه کوي:<br>ـ څوک کولای شي په دې جمله کې مفعول‌به وښايي ؟<br>(المعلم يساعدنا)<br>– د نوي درس د انګيزې د پيدا کول.<br>ـ څوک ويلی شي چې په عربي ژبه کې کسبونو ته څه وايي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | **دلوست وړاندې کول:**<br>ـ ښوونکی له ځواب موندلو نه وروسته د نوي درس عنوان (المهن) پر تخته ليکي، بيا د درس متن چې (المهن) دی لولي او له زده کوونکو غواړي چې لوست ته غوږ شي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي نمونه يې لوست ته غوږ نيسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ـ ښوونکي د درس متن د دويم ځل لپاره لولي او معنا کوي يې او په همدې وخت کې د درس مشکلي کلمي د تختې پر مخ ليکي او د زده کوونکو د مناقشې او ګډون سره يې په عربي او پښتو ژبه د تختي پر مخ ليکي او له دوي غواړي چې په خپلو کتابچو کې يې وليکي.<br>ـ ښوونکي څلورزده کوونکو ته وظيفه ورکوي چې په نوبت سره درس تکرار کړي.<br>ښوونکي دوو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د دويم تمرين ګډوډې کلمې د تختې پر مخ وليکي بيا شپږو نورو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې له ګډوډو کلمو نه بشپړې جملې جوړې کړي، خو د دوي غلطي سموي. | ـ زده کوونکي د درس سختې کلمې له معنا وو سره په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>ـ زده کوونکي خپلو هغو ملګروته چې د تختې پر مخ جملې جوړوي مرستي او مشوري ورکوي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>ـ څوک دا جمله معنا کولي شي؟<br>(أخي يحفر في الخشب)<br>ـ څوک د (يصلح) کلمه معنا کولې شي؟<br>ـڅوک د (المهن) کلمې مفرد ويلي شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ـ ښوونکي د لومړي تمرين حلول زده کوونکو ته کورنۍ وظيفه ورکوي.<br><br>**د درس پيغام:**<br>د زده کوونکو په دې پوهول په کار دي. چې د خپل ذوق او خوښي مطابق بايد د درس ترڅنګ يو ګټور کسب او حرفه هم زده کړي. | |

## یوولسم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** المهن

**مخ:** ۵۱-۵۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې(یودرسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده‌کوونکي باید:

- له بې ترتیبه کلمو څخه مفیدې جملې جوړې کړای شي.
- نوي کلمې په جملو کې استعمال کړای شي.
- غایبه مضارع په متکلمه مضارع بدله کړای شي.

**اضافي معلومات:**

**د حذف علامه:** هرکله چې په یوه جمله کې درې ټکي څنګ په څنګ (...) ولیدل شي نو دا د دې معنا ورکوي چې یوه یا ډیرې کلمې ترینه حذف یعني یا لیرې شوي دي.

دوه ټکي: هر کله چې په یوه جمله کې دوه ټکي سر په سر (:) ولیدل شي نو د دې معنا ورکوي چې دا کلمه د تفسیر او ښکاره کولوده او یا له یوه نوم نه وروسته راځي چې له هغه خبره صادره شوي وي، یا په بل عبارت دغه ټکي دویونکي او ښکاره کوونکي خبرې ترمنځ واقع کیږي لکه څنګه چې د (المهن) په درس کې دا خبره لیدل کیږي.

**د کلمو معنا:**

ینبي: جوړوي　　السیارات: موټرونه　　یطفئون: مړه وي.

رجال الإطفاء: اور مړه کوونکي پولیس.　　المحامي: د دعوا وکیل　　یطبخ: پخوي یې

یدافع: دفاع کوي　　النار: اور　　الحداد: آهنګر　　تطالع: وایي، مطالعه کوي

**د تدریس لاري:** مناقشه، تکرار، سوال او ځواب.

**د تدریس مرستندویه توکې:** کتاب، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ـ ښوونکی د سلام، پوښتنې او ټولګې له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېر درس ارزونه کوي. | د زده کوونکو فعالیتونه |
| ۳۰ دقیقې | **دلوست وړاندې کول:**<br>ـ ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په دریـــم تمرین کې ورکړل شوی کلمې په جملوکې استعمال کړي او بیا یې خپلو کتابچو ته ورسوي.<br>ـ ښاغلی ښوونکي د څلورم تمرین د حل لپـــاره لـــومړی د (أن) مصدري په اړه چې فعل مضارع ته نصب ورکوي لنډه رڼا اچوي او بیاد تمرین کلمې د تختې پر مخ لیکي او په جمله کـــې د هغـــې موقعیت او ځاي معلوموي.<br>ـ ښاغلی ښوونکي پنځم تمرین د څلورو زده کوونکو په واسطه د تختې پر مخ لیکي، بیا څلور زده کوونکي په نوبت سره راغواړي | زده کوونکي د دریم تمرین کلمې وروسته له استعماله په خپلو کتابچو کې رسوي.<br><br>زده کوونکي پنځم تمرین حلوي: |

<table>
<tr>
<td>١٠</td>
<td>چې هر يو په وار سره د ورکړل شويو فعلونو له بيلګې سره سم په متکلم واړوي، ښوونکي دوی هڅوي او مرسته ورسره کوي.<br>ــ ښوونکی د (أن مصدري) په اړه چې څنګه(أن مــضارع فعــل) مصدر ته اړوي رڼا اچوي.<br>− ښاغلی ښوونکی شپږم تمرين د يوه زده کوونکي په واســطه د تختې پر مخ ليکي او له دريو نورو زده کوونکو غواړي چې هر يو له بيلګې سره سم د تمرين پوښتنې ځواب کړي.<br>ــ ښاغلی ښوونکي د حذف د علامي په باب زده کوونکو ته رڼــا اچوي، بيا له دوی غواړي چې له ځان څخه دوه مثاله راوړي.<br><br>**ارزونه:**<br>ــ ښاغلی ښوونکي اتم تمرين چې د لغاتو ذخيره ده زده کوونکــو ته معنا کوي:<br>ــزده کوونکي دې د (الواجب المنزلي) تمرين په خپلو کتابچو کې حل کړي.</td>
<td>ــ أنا أفضل أن أقرأ<br>ــ أنا أرغب أن أطالع<br>ــ أنا أريد أن أسافر<br>ــ أنا أريد أن أحج<br><br>زده کوونکي شپږم تمرين داسې حلوي:<br>ــ تحب فاطمة الدرس<br>− يرجو شاكر خدمة الوطن<br>ــأنا أحب السياقة</td>
</tr>
</table>

## دولسم لوست(لومړی برخه)

**عنوان:** النشيد

**مخ:** ۵۳-۵۴

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يودرسي ساعت)

**د تدريس موخې:** زده‌کوونکي بايد:

- ددرس متن سم ولوستلای شي او معنا يې کړاي شي.
- د منادی معنا وپيژني
- د منادی حرفونه په جمله کې استعمال کړاي شي.
- ماضي فعلونه امر فعل ته واړولې شي.

**اضافي معلومات:**

نداء: عبارت له هغه غوښتني څخه ده چې د (يا) او يا ورته حرفونو په واسطه منځ ته راځي، يا به حقيقي وي يا مجازي، لکه: يا بني، اسمع نصيحة أهل العلم، (يا الله انصر عبدک)

له مخاطب نه غوښتنه او د هغي پوهول، د هغه د خبرو اوريدل او ورته غوږ نيول متکلم پوری اړه لري.

د نداء حرفونه اوه دي: همزه (أ) اوږده (ممدودة همزة) (آ) – (هيا) – (أي) – (وا) او (أيا).

**د کلمو معنا:**

سميعا: اوريدونکيمجيباً: قبلوونکي نجاحاً: کاميابي شرور: سختي

الحادثات: پيښې احم: ساتنه يې وکړه هيئ: تيار يې کړه

نائبات: مصيبتونه. العداة: د عدو جمع يعني دښمن

**د تدريس لپاره:** نمونه يې لوست، مناقشه، ځان ته اوډليز تکرار

**د تدريس موستندويه توکې: کتاب،** تخته، تباشير، د کارت کاغذ چې پري ترانه ليکل شوي وي.

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | ـ ښاغلی ښوونکی د سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېر درس ارزونه کوي.<br>ـ د نوي درس دعنوان په اړه انګيزه پيدا کوي:<br>ـ ترانې ته په عربي کې څه وايي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ـ ښاغلی ښوونکی د نوي درس عنوان (يا الهي) د تختي پر مخ ليکي او د درس متن د نمونې په توګه زده کوونکو ته لولي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی شعري متن يو ځل بيا لولي او له زده کوونکو غواړي چې د ده ترشايي زمزمه کړي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی له څلورو زده کوونکو غواړي چې هر يو په وار سره ترانه په لوړ اواز سره ولولي، هغه يې غلطي سموي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دترانې ويلو هنر ښايي او بيا | زده کوونکي له لوست ښوونکي وروسته تکراروي. |

<table dir="rtl">
<tr>
<td></td>
<td>دوو هغه زده کوونکو ته چې ښه غږ لري وظیفه ورکوي چې د صنف تر مخه په خپل ښکلي غږ ترانه ولولي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی د درس نوي کلمې د تختې پر مخ لیکي او د زده کوونکو په ګډون یې معنا کوي، له دوي غواړي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>ـ ښوونکی لومړي تمرین پر تخته لیکي او له څلورو زده کوونکو غواړي چې هر یو په نوبت د تختي پر مخ یوې پوښتنې ته ځواب ووایي.</td>
<td>زده کوونکي لومړي تمرین داسې حلوي.<br>ـ یطلب التلمیذ لنفسه نجاحاً.<br>ـ یطلب التلمیذ لوالده الحمایة أمام النائبات.<br>ـ دعا التلمیذ لامه السلامة من شرور الحادثات<br>ـ دعات التلمیذ لبلده النصر علي العدو</td>
</tr>
<tr>
<td>۱۰<br>دقیقې</td>
<td>ارزونه:<br>ـ څوک د درس لومړي دوه بیته معنا کولي شي؟<br>ـ څوک د (احم) کلمه معنا کولې شي؟<br>ـ څوک دا پوښتنه په عربي کې ځوابولې شي؟<br>(ماذ ایطلب التلمیذ لنفسه)<br><br>کورنۍ دنده:<br>زده کوونکو ته دا وظیفه ورکوي چې ترانه په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي او له یادو یې زده کړي.<br><br>د درس پیغام:<br>زده کوونکي باید وهځول شي چې له خپل څښتن سره نیغ ارتباط او تړاو د عبادت او زاریو له لارې پیدا شي، ځکه زاري او دعا د اسلام ستر پیغمبر (ص) د عبادت مغز بللې، د دغه درس متن هم په حقیقت کې په شعري لفظونو کې دعا او غوښتنه ده.</td>
<td></td>
</tr>
</table>

## دولسم لوست(دویمه برخه)

**عنوان:** النشید

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې(یودرسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده‌کوونکي باید:

- د لومړۍ برخې هدفونه.

**اضافي معلومات:**

د لومړۍ برخې موخې په پام کې نیول پکار دي.

**د کلمو معنا:**

**د تدریس لارې چارې:** مناقشه، یوکسیز او ډله‌ییز تکرار.

**د تدریس موستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر....

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | ـ ښاغلی ښوونکی د سلام، پوښتنې او تولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېر درس ارزونه کوي:<br>ـ څوک کولی شي چې د (یاالهي) ترانه له یاده ولولي. | |
| ۳۰ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ـ ښاغلی ښوونکی د دویم تمرین کلمې پر زده‌کوونکو زده کوي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی د دریم تمرین د حل لپاره، زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپلو کتابچو کې څلور جملې ولیکي اود حل لپاره یې د تمرین له ورکړل شویوکلمو نه استفاده وکړي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی څلورم تمرین د تختې پرمخ لیکي او بیا پنځه تنه زده‌کوونکي په دې ګماري، چې هر یو په وار سره د ماضي فعلونو امر ولیکي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی د نداء د اسلوب او علامې په اړه زده‌کوونکو ته رڼا اچوي په پنځم تمرین کې راغلی بیلګې ورته تشریح کوي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی له شپږو تنو زده‌کوونکو غواړي چې د تختې مخې ته راشي او هر یو د شپږم تمرین یوه، یوه جمله ولیکي او د نداء علامه ورته کېږدي.<br>ـ ښاغلی ښوونکی د مناقشې په ډول اووم تمرین له زده‌کوونکو سره حلوي. | زده‌کوونکي دریم تمرین خپلو کتابچو کې حلوي:<br><br>زده‌کوونکي څلورم تمرین په دې ډول حلوي:<br>صام– صم<br>قام– قم<br>لام– لم<br>دار– در<br>قال– قل |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰<br>دقیقې | **ارزونه:**<br>زده کوونکي دې د ندايي يوه، يوه جمله له ځانه جوړه اوپه ټولګي ووايي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې په غټو ورقو کې په ښکلي خط(نشید) ولیکي تر څو د ټولګي په دیوالي مجله کې یې ځای پر ځای کړو. | |

## دیارلسم لوست (لومړۍ برخه)

**عنوان:** آداب الضيافة

**مخ:** ۵۷–۵۹

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**د تدريس موخې:**

زده کوونکي بايد:

- د لوست متن ولوستلای شي او معنا يې کړای شي.
- له جملو څخه منصوب مضارع فعلونه راوباسي.
- (لن، كن، إذن او حتى) حرفونه په جملو کې وکارولای شي.
- د نهی اسلوب وپېژني.

**اضافي معلومات:**

نهی: د بيان او نحوې په علمونو کې عبارت دی له: هغې غوښتنې څخه چې د يو کار نه د لاس اخېستلو او منع کولو لپاره په الزامي (جدي) توګه استعمالېږي او يوازې يوه صيغه لري چې د مضارع په فعل د لام نهی مجزوم حرفونه داخل شي، لکه: لا تذهب ــ لا تتكاسل ــ لا تأكل.

**د کلمو معنا:**

| | | |
|---|---|---|
| تستضِيف: مېلمستيا کوي | الضيافة: مېلمستيا | الموعد: د وعدې وخت او ځای |
| العنوان: آدرس (پته) | عليک: پر تا لازمه ده | ترحب: ښه راغلاست وايي |
| اهلاً و سهلاً: ښه راغلاست | مرحبابکم: ښه راغلاست | إسأل: پوښتنه وکړه |
| أکرمه: درناوې يې وکړ | لاتترکه: مه يې خوشې کوه. | قدمه: وړاندې يې کړ |
| المائدة: دسترخوان | يستحي: شرمېږي | ودعه: مخه ښه ورسره وکړه |

**د تدريس لارې چارې:**

نمونه يي لوست، مناقشه، ځانته او ډله ييز تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکي:**

کتاب، تخته او تباشير.

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵<br>دقیقې<br>مقدمه<br><br><br><br><br><br>۳۰<br>دقیقې | ـ ښاغلی ښوونکی د سلام، پوښتنې او تړولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېر درس ارزونه کوي:<br>څوک کولی شي دغه فعلونه (صام، قال، قام) امر فعلونو ته واړوي؟<br>• **د نوي لوست د انګیزې لپاره پوښتنه کوي:**<br>• مېلمستیا ته په عربي کې څه وایي؟<br>د لوست وړاندې کول:<br>• ښاغلی ښوونکي له ځواب موندلو نه وروسته، د نوي لوست عنوان (آداب الضیافة) پر تخته لیکي.<br>• ښاغلی ښوونکي د لوست عنوان له لیکلو څخه وروسته، د لوست متن لولي او له زده کوونکو غواړي چې په چوپتیا سره خپلو کتابونو ته وګوري.<br>• ښاغلی ښوونکی د دویم ځل لپاره د لوست متن لولي، ستونزمنې کلمې د تختې پر مخ لیکي او بیا یې په عربي ژبه معنا کوي.<br>• ښوونکی وروسته له زده کوونکو غواړي چې ستونزمنې کلمې له معناوو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>• ښوونکی له دریوو زده کوونکو غواړي چې هر یو د لوست درې درې کرښې ولولي، ښوونکی دوی هڅوي او ستونزې یې ور حل کوي.<br>• ښوونکی دوو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د دویم تمرین کلمې د تختې پر مخ ولیکي، بیا له څلورو نورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو دې په وار سره دغو کلمو ته پوښتنې ولیکي.<br>• ښوونکی دوو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د دریم تمرین د لومړۍ کرښې کلمې د تختې پر مخ ولیکي او نورو زده کوونکو ته سپارښته کوي چې د لومړۍ کرښې ضد کلمې ددې مخې ته ولیکي. | زده کوونکي لوست ته غوږ ږدي.<br>زده کوونکي ستونزمنې کلمې له معناوو سره په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>زده کوونکي پوښتنې داسې وړاندې کوي:<br>- لماذا تدعو صدیقک؟<br>- کیف تعطی عنوان بیتک؟<br>- ماذا تحضر لضیفک قبل الطعام؟<br>- متی تکف عن الطعام<br>زده کوونکي دریم تمرین حل کوي:<br>الف ب<br>أعطه خذه<br>قبله بعده<br>تقوم تجلس<br>یفرح یحزن<br>یتوقف ،یسیر یکف |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ | **ارزونه:**<br>• **څوک کولی شي ددغو کلمو ضد (أعطه، تقوم، يفرح) ووايي؟**<br>• **څوک د لوست متن سم لوستلای شي؟**<br>• **څوک دغه کلمې (عنوان، يتناول، تکيف) معنا کولای شي؟**<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکي پر دې گماري چې لومړی تمرين په خپلو کتابچو کې وليکي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>**زده کوونکي بايد د مېلمستيا پر ادبونو او د هغې پر ټولنيزو اغېزو پوه شي.**<br>**د اسلام ستر پيغمبر ﷺ د مېلمه په اړه فرمايي: "څوک چې پر خدای او د آخرت په ورځ ايمان لري، هغه دې د خپل مېلمه درناوی وکړي."** | |

## دیارلسم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** آداب الضیافة

**مخ:** ٦٠-٦٢

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- مضارع منصوب فعلونه له جملو راوویستلای شي.
- نصب حرفونه په جملو کې استعمال کړای شي.
- د نهي اسلوب وپېژني.
- متضادې کلمې وپېژني.

**اضافي معلومات:** د لومړۍ برخې پاتې هدفونه

**د کلمو معنا:**

یکف: ځان لرې کوي　　یسیر: روانېږي　　الغداء: د غرمې ډوډۍ　　الفساق: بد خلک

**د تدریس لارې چارې:**

نمونه یي، مناقشه یي، پوښتنه او ځواب، ځانته او ډله ییز تکرار.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | • ښوونکی د سلام، پوښتنې او تولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• څوک ددې پوښتنې (متی تکف عن الطعام؟) ځواب په عربي ویلی شي؟ | د هرې ډلې اســتازی د څلورم تمــرین حــل د تختې پرمخ لیکي:<br>- أرید أن أتناول طعام الغداء مع أسرتی<br>- لن أرجع إلی البیــت متأخراً<br>- أدخل الغرفة لکــی استریح قلیلاً<br>- أحب أن اتعلم اللغة العربیة |
| ۳۰ دقیقې | دلوست وړاندې کول:<br>• ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په دوو ډلو ویشي او پر دې یې ګماري چې څلورم تمرین چې د نابشپړو جملو پوره کول دي د ورکړل شوو کلمو نه په ګټه اخیستنې سره په خپلو کتابچو کې پوره کړي.<br>• بیا د هرې ډلې استازي راغواړي او لارښوونه ورته کوي چې د تختې په یوه څنډه بشپړې جملې ولیکي. ښوونکی دوی هڅوي او مرسته ورسره کوي.<br>• ښوونکی دوو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست پنځم تمرین د تختې پر مخ ولیکي، وروسته له دوو زده کوونکو غواړي چې هر یو دې په وار سره دورکړل شوي مثال نه په ګټه اخیستنې سره (أن، لن کي، إذن) په مضارعو فعلونو داخل کړي.<br>• ښوونکی شپږم تمرین د تختې پر مخ لیکي او زده کوونکو ته د (لا) نهی په اړه | زده کــوونکي تمــرین حلوي:<br>أن نعمل　کی نعمل<br>لن نعمل　إذن نعمل |

| ۱۰ دقیقې | معلومات ورکوي. بیا له دوو زده کوونکو غواړي چې جملې تکرار کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>• ښوونکی له زده کوونکو غواړي چې هر یو دې د اووم تمرین اړوند جملو کې د (لا) نهی استعمال کړي.<br>• ښوونکی د اتم تمرین کلمې له زده کوونکو سره معنا کوي. | أن نلتزم　لن نلتزم<br>کی نلتزم　إذن نلتزم |
|---|---|---|
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکي پر دې ګماري چې د (الواجب المنزلي) تمرین نه پرته اووم تمرین هم په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

## څوارلسم لوست (لومړی برخه)

**عنوان:** آداب المجلس

**مخ:** ۶۳–۶۵

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- لوست سم ولوستلای شي او معنا یې کړای شي.
- مرفوع او مجزوم مضارع فعل وپېژني.
- په جملو کې د جزم حرفونه (لم، لما او لا) وپېژني.
- جازم حرفونه په مضارع فعلونو داخل کړای شي.

**اضافي معلومات:**

- مضارع فعل په راتلونکي زمانې باندې دلالت کوي، هر کله چې د جزم حرفونه (لم، لما او لا) پر مضارع فعلونو باندې داخل شي نو هغوی ته جزم ورکوي او د جزم علامه عبارت له دې څخه ده چې د مضارع فعل له آخر نه د رفع علامه حذف یعنې لرې کړای شي، لکه:

يدرسُ – لم يدرسْ　　　　يظهرُ – لم يظهرْ

- (لم، لما او لا) د نفی، جزم او قلب (بدلون) حرفونه دي چې مضارع فعل ته جزم او نفې ورکوي او معنا یې راتلونکي ته اړوي، لکه:

لم يكتب: (ویې نه لیکه)　　　　لم يرجع: (بېرته را ونه گرځېد)

لما نسمع: (تر اوسه مو ندي اورېدلي)　　　　لما نكتب: (تر اوسه مو ندي لیکلي)

- (لا) د نهی حرف دی چې د مضارع فعل په سر کې راځي او د نه کولو د غوښتنې په معنا سره راځي، یا په بل عبارت مضارع فعل د نهی او جزم خواو ته اړوي، لکه: لا تذهب – لا تكتب

- لام امر: د مضارع فعل سرته راځي او د کار کولو د غوښتنې په معنا سره راځي، لکه:

ليكتب سعيد: (سعید باید لیکل وکړي)

**د کلمو معنا:**

**د تدریس لارې چارې:**

نمونه یي لوست، مناقشه، پوښتنه او ځواب، ځانته تکرار.

**د تدریس مرستندویه توکي:**

کتاب، تخته، تباشیر ټایپ او کېسټ (د امکان په صورت کې).

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | • ښوونکی د سلام، پوښتنې او تپولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• څوک (کی او إذن) حرفونه په جملو کې کارولای شي؟<br>• د نوي لوست د انګېزې د پیداکولو لپاره پوښتنې مطرح کوي:<br>د لوست وړاندې کول: | |
| ۳۰ دقیقې | • څوک ویلی شي چې په مجلس کې باید د څه شي مراعات وشي؟<br>• ښوونکی له ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان (آداب المجلس) د تختې پر مخ لیکي، د لوست متن لولي او له زده کوونکو غواړي چې لوست ته غوږ کېږدي.<br>• ښوونکی د لوست متن د دویم ځل لپاره لولي او معنا کوي یې، بیا د لوست ستونزمنې کلمې د تختې پر مخ لیکي او د دزه کوونکو په ګډون یې معنا کوي له هغوی غواړي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>• ښوونکی څو زده کوونکي پر دې ګماري چې د لوست متن د محاروې (خبرو اترو) په ډول ولولي او دی یې غلطي سموي.<br>• ښوونکی څلورو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې هر یو دې په وار د تختې مخې ته راشي، د دویم تمرین یوه یوه جمله دې د تختې پر مخ ولیکي. د سمې جملې مخې ته د (صحیح نښه) او د ناسمې جملې مخې ته د (غلط نښه) کېږدي. | زده کوونکي دویم تمرین داسې حل کوي:<br>- یجب أن نستأذن للدخول عند الزیارة (✓)<br>- یجب ان نرفع أصواتنا عند الحدیث (✕)<br>- أزور أقاربي فی أی وقت أرید (✓)<br>- لا أعبث فی المجلس بشعری و أنفی |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک کولی شي (یتحدث، لا تقاطع، یمیناً و شمالاً) معنا کړي؟<br>• څوک کولی شي د لاندې جملې سموالی او ناسموالی د تختې پر مخ په نښه کړي؟<br>(أزور أقربائی فی أی وقت أرید)<br>• څوک کولی شي چې داپوښتنه (إلی أین خرج عبدالله؟) په عربي ژبه ځواب کړی؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته لومړی او دریم تمرین د کورنۍ دندې په توګه ورکوي، چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br><br>**د لوست پیغام:**<br>زده کوونکي باید د دوستانو او ګاونډیانو د لیدو او کتو په ادبونو پوه شي. | |

## څوارلسم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** آداب المجلس

**مخ:** ٦٦

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید: په غونډو کې د ګډون په ادابو وپوهیږي.

**اضافي معلومات:** د مشرانو او لویانو سره د خبرو په ادابو وپوهیږي.

د لومړۍ برخې اهداف دې په پام کې ونیول شي. د آداب المجلس ترکیب په جملو کې وکارولی شي.

**د کلمو معنا:**

أستأذن: اجازه غواړم تقاطع: پرې کوي تلتفت: څیریږي نعبث: لوبې کوو

**د تدریس لارې چارې:**

پوښتنه او ځواب، ځانته او ډله ییز تکرار.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | • ښوونکی د سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• لاندې جمله په عربي ځواب کړئ:<br>• ماذا أفعل حین أجلس فی المجلس؟ | زده کوونکي تمرین داسې حل کوي:<br>- محمد لم یخرج إلی السوق<br>- لما أذهب إلی المکتب<br>- هو یقول لا تحضر الجلسة |
| ۳۰ دقیقې | دلوست وړاندې کول:<br>• ښوونکی له زده کوونکو غواړي چې څلورم تمرین په خپلو کتابچو کې حل او وروسته له لیکلو یې د ټولګي مخې ته ولولي.<br>• ښوونکی دوه زده کوونکي غوره کوي، یو ته لارښوونه کوي چې د څلورم تمرین لومړۍ کرښې جملې ولولي. دویم دې د دویمې کرښې جملې ولولي او په دې ډول دې د نحوې له مخې د جملو تر منځ توپیر په نښه کړي.<br>• ښوونکی پنځم تمرین پر درو زده کوونکو د تختې پر مخ لیکي، بیا له دوی غواړي چې د جزم حرفونه (لم، لما، لا) دې په سم ډول په خالي ځایونو کې ځای پر ځای کړي. ښوونکی له دوی سره مرسته کوي او هڅوي یې.<br>• ښوونکی د لوست شپږم تمرین د دوو زده کوونکو په واسطه د تختې پر مخ لیکي، بیا دوه نور زده کوونکي په وار سره راغواړي او هر یو له نمونې سره سم تمرین حل کوي.<br>• ښوونکی د شپږم تمرین یو مثال حل کوي او پاتې تش ځایونه زده کوونکو ته پرېږدي، خو دوی هڅوي او غلطي یې ورته سموي.<br>• ښوونکی د (إذا) په اړه زده کوونکو ته رڼا اچوي، د اووم تمرین یو مثال د تختې پر مخ لیکي او له زده کوونکو غواړي چې پاتې تمرین د ورکړل شوي مثال په ډول نور حل کړي. | زده کوونکي پنځم تمرین داسې حل کوي:<br>یلعب، لم یعلب، لا تعلب، لما تعلب<br>یمرح– لم یمرح، لا تمرح، لما تمرح<br>زده کوونکي د نمونې په ډول تمرین حل کوي:<br>- إذا جلست فی المجلس فاستمع إلی حدیثهم<br>زده کوونکي له مثال سره سمې پاتې دوې |

| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>● ښوونکی اتم تمرین پر زده کوونکو معنا کوي:<br>**الهدوء: آرامي        الترحیب: ښه راغلاست        اللقاء: مخامخ کېدل** | **جملې پوره کوي.** |
|---|---|---|
|  | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده (الواجب المنزلي) ورکوي، تر څو يې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |  |

## پنځلسم لوست (لومړۍ برخه)

**عنوان:** الخليفة الأول

**مخ:** ٦٧

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**د تدريس موخې:** زده کوونکي بايد:

- د لوست متن ولوستلای شي.
- پنځو کلمو والا غير مرتبې جملې ترتيب او بيا ترې سمې جملې جوړې کړي.
- (کان و أخواتها) په جملو کې وکارولای شي.
- د شرطه (–) کارول په جملو کې وپېژني.

**اضافي معلومات:**

شرطه چې د (–) نښې په واسطه ښودل کېږي، په عام ډول د دوو تنو د خبرو تر منځ اېښودل کېږي، همدا راز د عدد او شمېر نه وروسته هم ليکل کېږي.

شرطتان: شرطتنان چې د (– –) علامې په واسطه په نښه کېږي، د معترضه جملو دواړو خواوو ته لګول کېږي، يا په بل عبارت معترضه جمله د شرطتانو په واسطه بندېږي.

**د کلمو معنا:**

مولد: د زېږېدو وخت　　صار: وګرځېد　　هدى: لارښوونه يې وکړه　　توفى: وفات شو

**د تدريس لارې چارې:**

نمونه يي لوست، مناقشه، ځانته او ډله ييز تکرار، پوښتنه او ځواب.

**د تدريس مرستندويه توکي:**

کتاب، تخته، تباشير، ټايپ او کېسټ (د امکان په صورت کې).

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | • ښوونکی د سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• څوک "لما" په جمله کې کارولای شي؟<br>**د نوي لوست دانګېزې پيداکولو په موخه پوښتنه مطرح کوي:**<br>• څوک ويلی شي چې د اسلام لومړی خليفه څوک دی؟ | |
| ۳۰ دقيقې | دلوست وړاندې کول:<br>• د ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان (الخليفة الأول) د تختې پر مخ ليکي، بيا د لوست متن لولي، معنا کوي يې او له زده کوونکو غواړي چې لوست له ځان سره په چوپتيا ولولي.<br>• وروسته ښوونکی، دوه دوه کرښې په څو زده کوونکو لولي په خپله ور سره مرسته کوي.<br>• ښوونکی د لوست ستونزمنې کلمې د تختې پر مخ ليکي، په پښتو او عربي | زده کوونکی په چوپتيا لوست لولي.<br>زده کوونکي د لوست ستونزمنې کلمې په خپلو |

| | | |
|---|---|---|
| | ژبو يې معنا ليکي او له زده کوونکو غواړي چې په خپلو کتابچو کې يې وليکي.<br><br>**ارزونه:**<br>• **ښوونکی د لوست دويم تمرين پر زده کوونکو حل کوي:**<br>- **ولد ابوبکر بعد النبی ﷺ بسنتين**<br>- **هدی الله علی يديه کبار العرب**<br>- **إختار الرسول أبابکر ليکون صاحبه**<br>- **و أصبح أول خليفة المسلمين**<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي، لومړي تمرين چې د پوښتنو ځوابول دي د لوست له متن نه ځواب او په خپلو کتابچو کې وليکي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>د ابوبکر صديق رضي الله عنه پوره پېژندنه او د اسلام په لار کې له هغه د قربانيو او سرښندنو څخه د يادونې کول ګټور کار دي. | کتابچو کې ليکي.<br><br>زده کوونکي ګډې وډې کلمې ترتيبوي. |

## پنځلسم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** الخليفة الأول

**مخ:** ۶۹–۷۰

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**د تدريس موخې:** زده کوونکي بايد:

- د"کان و أخواتها" معناوې وپېژني.
- د "کان واخواتها په جملو استعمال کړای شي.

**اضافي معلومات:**

- "کان و أخواتها" هغه نابشپړ فعلونه دي چې پر مبتدأ او خبر داخلېږي. مبتدأ ته رفع ورکوي او د "اسم کان" په نامه سره يادېږي او خبر ته نصب ورکوي چې د "خبر کان" په نامه سره يادېږي، لکه:

علی عالمٌ – کان علیٌ عالماً          الجو جميل – کان الجو جميلاً

کان و أخواتها عبارت دي له: کان (و)، ظلّ (په ټوله ورځ کې همداسې و)، بات (په ټوله شپه کې وه)، أصبح (سبايې کړ)، صار (وشو)، ليس (نه دی)، أضحی (څاښت يې کړ)، أمسی (ماښام يې کړ) مازال، ما فتئ ، مابرح، ما إنفک (نښتی او پيوسته) ، مادام (پاتې شو).

**د کلمو معنا:**

**د تدريس لارې چارې:**

مناقشه، پوښتنه او ځواب، تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکي:**

کتاب، تخته او تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | • ښوونکی د سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي: <br> • څوک دا (هدی الله علی يدی أبی بکر کبار العرب) جمله معنا کولی شي؟ | زده کونکي تمرين داسې حل کوي: <br> - هو أبوبکر الصديق <br> - عمل ابوبکر بالتجارة |
| ۳۰ دقيقې | دلوست وړاندې کول: <br> • ښوونکی لومړی تمرين د پنځو زده کوونکو په واسطه د تختې پر مخ ليکي، بيا پنځو نورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر يو دې په وار سره يو ځواب ته پوښتنه جوړه کړي. <br> • ښوونکی د لوست دريم تمرين يوځلې لولي، بيا يې معنا کوي او د "کان او أخواتها" په اړه معلومات ورکوي. <br> • بيا د څلورم تمرين کلمې د يو زده کوونکي په واسطه د تختې پر مخ ليکي، له څلورو نورو زده کوونکو څخه غواړي چې د کلمو تر مخې د هغې جمع وليکي. | - ولد ابوبکر الصديق بعد مولد النبي ﷺ <br> - اختار محمد ﷺ ابابکر ليکون صديقه فی الهجرة <br> - توفی ابوبکر سنة ثلاث عشر من الهجرة <br> <br> زده کوونکي څلورم تمرين حل کوي: |

<table>
<tr>
<td></td>
<td>• ښوونکی له زده کوونکو غواړي چې پنځم تمرین په خپلو کتابچو کې حل او د جملو جوړولو لارې ورته ښايي.<br><br>ارزونه:<br>• ښوونکی اووم تمرین چې د (الذخيرة اللغوية) د لغاتو زېرمه ده په زده کوونکو معنا کوي:<br>امير المؤمنين: د مسلمانانو مشر     السلطان: پاچا<br>رئيس الوزراء: لومړی وزير (صدر اعظم)     العقيد: ډگروال<br><br>کورنۍ دنده:<br>ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده (الواجب المنزلي) ورکوي او له دوی غواړي چې په جملو کې د "كان او أخواتها" په اېښودلو سره لازم بدلونونه راولي.</td>
<td>مفرد    جمع<br>صاحب    أصحاب<br>نسب    انساب<br>مسلم    مسلمين<br>رجل    رجال</td>
</tr>
</table>

## شپاړسم لوست (لومړۍ برخه)

**عنوان:** نهر کابل

**مخ:** ۷۱

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست متن سم ولوستلای شي او معنا یې کړای شي.
- د نوو لغتونو معناوې وپېژني.
- د تمرین پوښتنو ته ځوابونه وویلی شي.

**اضافي معلومات:**

هر کله چې د اسمیه جملو سر ته (انَّ) یا ورته حرفونه کېږدو، نو دغه جملې د مبتدأ او خبر اعرابي حالت څخه وځي، لومړی اسم (مبتدأ) منصوب او دویم اسم (خبر) یې مرفوع کېږي، لکه: إن محمداً طالبٌ. په دې جمله کې "محمداً " اسم د "انَّ " منصوب او "طالبٌ" یې د "ان خبر" مرفوع واقع شوی او همداسې په ټولو نورو اسمیه جملو کې د "انَّ " نور حرفونه عبارت دي له: أنّ، كأنّ، ليت، لكنّ، لعلّ.

- دغه حرفونه د ناسخو حرفونو په نامه یادېږي.

**د تدریس لارې چارې:**

نمونه یي لوست، مناقشه، پوښتنه او ځواب، څانته او ډله ییز تکرار.

**د تدریس مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، د کابل ښار نقشه، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | • ښوونکی له سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• څوک د تېر لوست متن سم لوستلای شي؟<br>• څوک د اسلام د لومړي خلیفه په اړه یوه دقیقه خبرې کولی شي؟<br>**د نوي لوست د انګېزې د پیداکولو لپاره پوښتنې مطرح کوي:**<br>– سیند ته په عربي ژبه کې څه وایي؟ | زده کوونکی د ښوونکي نمونه یي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۳۰ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>• ښوونکی د ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان (نهر کابل) په نامه نوی لوست پیلوي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي.<br>• ښوونکی د لوست متن زده کوونکو ته لولي او له هغوی غواړي چې لوست ته غوږ شي، بیا د لوست دوه دوه کرښې پرڅو زده کوونکو لولي ترڅو د دوی له سمو لوستلو څخه ډاډه شي.<br>• ښوونکی یوځل بیا د لوست متن زده کوونکو ته لولي او معنا کوي، بیا د لوست ستونزمنې کلمې او د هغې معناوې پر تخته لیکي او له زده | زده کوونکي د لوست ستونزمنې کلمې او دهغوی معناوې په خپلو کتابچو کې لیکي. |

| | | |
|---|---|---|
| | کوونکو غواړي چې په خپلو کتابچو کې يې وليکي.<br>• ښوونکی د لومړي تمرين پر اړوند له زه کوونکو پوښتي او هغوی ته لارښوونه کوي چې د لوست له متن نه په ګټه اخېستنې سره ورته ځوابونه ووايي. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>• څوک د لوست متن سم لوستلای شي؟<br>• څوک دا (يزداد ماء نهر کابل فی الربيع) جمله معنا کولی شي؟<br>• څوک دې (من أين ينبع نهر کابل؟) جملې ته په عربي ژبه کې ځواب ويلی شي؟<br>• څوک دا کلمې معنا کولی شي؟<br>(سدود، ينضم، بنيت)<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دويم او دريم تمرين زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکوي او دوی ته لارښوونه کوي چې په دويم تمرين کې له ورکړل شوو کلمو نه په ګټه اخېستنې تش ځايونه ډک کړي، په خپلو کتابچو کې يې وليکي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>د افغانستان د سيندونو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکول او داچې اوبه د ژوندانه د پايښت او پرمختګ يوه ستره سرچينه ده. | |

## شپاړسم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** نهر کابل

**مخ:** ۷۳-۷۴

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:**

زده کوونکي باید:

متن ولوستلای شي.

نوی لغتونه له معناوو سره وپېژني.

په خپلواک ډول تمرین حل کړای شي.

**د کلمو معنا:**

مياه: اوبه　ثلج: واوره　سحاب: ورېځې　مطر: باران

عيون: چينې　برد: ږلۍ　کهرباء: برېښنا　سد کهرباء: د برېښنا بند

**د تدریس لارې چارې:**

مناقشه، پوښتنه او ځواب، څانته کار.

**د تدریس مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، تخته او تباشير.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | • ښوونکی له سلام، پوښتنې او تولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• څوک به دا کلمې (ينبع، يزداد، ينضم و يقل) معنا کړي؟<br>• ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځيروي او د نوي لوست سرليک د لوی الله ﷻ په نامه پيل کوي. | |
| ۳۰ دقيقې | دلوست وړاندې کول:<br>• ښوونکی له زده کوونکو سره د تمرين د حل په اړه مناقشه کوي او له دوی غواړي چې ددغه تمرين کلمې چې په واقعيت کې جمع تکسير دي په مفردو کلمو واړوي، وروسته له اړولو يې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>• ښوونکی لومړی د حروف مشبه بالفعل يا حروف ناسخه (إنَّ و اخواتها) په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>• بيا د پنځم تمرين جملې چې په هغې کې (إنَّ و اخواتها) کارول شوی دی د تختې پر مخ ليکي او د (إنَّ و اخواتها) د کار په اړه چې مخکې پرې رڼا واچول شوه دوی ته عملاً ښايي، له د هغو جملو نه يې په توپير ورته ښايي چې (إن) پرې نده داخل شوي او بيا جملې پر دوی تکراروي.<br>• ښوونکی د شپږم تمرين جملې چې مبتدأ او خبر دی د تختې پر مخ ليکي، له | زده کوونکي د څلورم تمرين کلمې د مفرد حالت سره ليکي.<br><br>زده کوونکي اووم تمرين په خپلو کتابچو کې حل کوي. |

| وخت | فعالیتونه | |
|---|---|---|
| | ځو زده کوونکو غواړي چې هر یو دې په خپل وار د تختې مخې ته راشي او (إن) دې پرې داخل کړي، بیا له ځو نورو زده کوونکو غواړي چې هغه کلمې چې د (إن) له داخلېدو وروسته بدلون غواړي ورته حرکت ورکړي، لکه:<br>ان الکتاب جمیلٌ و إن الموت حقٌ<br>• ښوونکی د اووم تمرین د حل په اړه له زده کوونکو څخه غواړي چې په خپلو کتابچو کې څلور جملې ولیکي، د "یزداد" کلمه په کې وکاروی او بیا دې په لوړ اواز سره ولولې او یوه جمله دوی ته د نمونې په توګه وړاندې کوي، لکه:<br>یزداد الفواکه فی الصیف<br>• ښوونکی د اتم تمرین درې جملې د تختې پرمخ لیکي او له زده کوونکو سره د هغوی د توپیر په اړه غږېږي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>• ښوونکی نهم تمرین چې د لغاتو زېرمه ده، د تختې پرمخ لیکي، معنا کوي یې او بیا یې په لوړ اواز سره دوی ته لولي چې زده کوونکي یې ترشا تکرار کړي.<br>• هغه همدا راز بیا له یوه زده کوونکي غواړي چې د تختې مخې ته راشي او په لوړ اواز سره دغه کلمې ولولي، چې ملګري یې ورسره تکرار کړي، مثلاً:<br>میاه: اوبه ثلج: واوره سحاب: ورېځې مطر: باران<br>عیون: چینې برد: ږلۍ کهرباء: برېښنا سدالکهرباء: دبرېښنا بندونه<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده (الواجب المنزلي) ورکوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | |

## لوست: اوولسم (لومړی برخه).

**عنوان: الاِجازةُ الصيفية.**

**مخ:** ۷۵ – ۷٦.

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**د تدريس موخې**

زده کوونکي بايد:

– د درس متن سم ولوستلای شي.

– په خپلو منځو کې د اوړې د رخصتيو په اړه سره وغږيدای شي.

– د درس پوښتنو ته ځوابونه ويلای شي.

– خبري جملې استفهامي جملو ته واړولای شي.

– له بې ترتيبه کلمو څخه مرتبې جملې جوړې کړای شي.

**اضافي معلومات:**

**د کلمو معنا:**

الاِجازةُ الصيفيةُ: د اوړي رخصتي. العطلةُ: رخصتي. يحاور: خبرې اترې کوي. ازور: ليدل کتل کوو. ستبقى: پاتې به شي.

د تدريس لارې چارې: نمونه يې لوست ، مناقشه ، سوال او ځواب ، ځان ته. او ډله ييز تکرار.

د تدريس مرستندويه توکې: درسي کتاب ، تخته او تباشير.

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | • ښوونکی له سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک داسې جمله ويلی شي چې په کې (اِنَّ) کارول شوي وي.<br>د نوي درس د انګيزې د پيدا کولولپاره پوښتنې کوي:<br>– د اوړي رخصتيو ته په عربي کې څه وايې؟<br>دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی د ځواب موندلو نه وروسته د نوي درس عنوان (الاِجازةُ الصيفيةُ) د تختې پر مخ ليکي ، او نوي لوست د لوي الله جل جلاله په نامه سره پيلوي. | |
| ۳۰ دقيقې | – ښوونکی د درس متن زده کوونکو ته لولي او پر څو زده کوونکو يې تکراروي ، هغه بيا درس د دويم ځل لپاره لولي او معنا کوي يې او په ترڅ کې يې محاوره (خبري اتري) په عملي توګه پر دوی تر سره کوي. | |
| | – ښوونکی د درس لومړی تمرين له زده کوونکو پوښتي او دوی ته لارښوونه کوي چې د درس د متن په روښنايي کې ورته ځواب ووايې. | |

| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک د درس متن سم لوستلای شي ؟<br>– څوک دا کلمې (الصیف ، العطلةُ ، ازور) معنا کولای شي ؟<br>– څوک دا جمله معنا کولای شي ؟<br>(کم یوما ستبقی هناک ؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی دویم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي، له دوی غواړي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. د سمو جملو مخې ته سمه علامه او غلطو جملو مخې ته غلطه علامه کیږدي.<br><br>**د درس پیغام:**<br>زده کوونکي باید د ښوونځیو د رخصتیو پر موخو او د هغو دقیقو برنامو په اړه پوه شي چې په دې وخت کې تر سره کیږې ، ځکه ډیر وخت داسې کارونه په رخصتیو کې کیږي چې د تعلیم په بهیر کې نه شي تر سره کیدای. | |
|---|---|---|

## لوست: اوولسم (دویمه برخه).

**عنوان:** الاجازة الصفية

**مخ:** ۷۷ – ۷۸

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**د تدريس موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

– د جر حرفونه و پيژني.

– د جر حرفونه په جملو کې اِستعمال کړای شي، متن ولوستلای شي.

**اضافي معلومات:**

حرف: هغه کلمه ده چې ځان ته معنا نه ورکوي او دکلمو تر منځ ارتباط او تړاو پيدا کوي ، لکه: جلستُ على الكرسي ، خرجت من الفصل.

– د حرف له ډولونو څخه يو ډول د جر حرفونه دي. د جر حرفونه عبارت دي له: (من ، اِلی ، حتی ، خلا ، حاشا ، عدا ، في ، عن ، على ، مذ ، منذ ، رب ، لام ، واو ، تاء ، باء).

د جر حرفونه پر اِسم پورې تړاو لري ، او هغه اِسمونه چې له حرف جر وروسته راځي نيغ په نيغه مجروريږي ، لکه: ذهبتُ اِلى المدرسةِ ، جئتُ من المدرسةِ.

**د کلمو معناوې:**

حديقةُ الحيوانات: ژوبڼ (باغ وحش). الأسبوع الماضي: تيره اونۍ. كليةُ الشريعة: د شرعياتو پوهنځی.

**د تدريس لارې:** ځان ته ، سوال او ځواب.

**د تدريس مرستندويه توکې:** درسي کتاب ، تخته او تباشير.

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه<br><br><br>۳۰ دقيقې | ● ښوونکی له سلام، پوښتنې او ښوګڼې له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي ؟<br>(سأبقى هناک عشرين يوماً).<br>**دلوست وړاندې کول:**<br>– محترم ښوونکی دوو زده کوونکو ته وظيفه ورکوي تر څو هر يو په خپل وار د دريم تمرين بې ترتيبه کلمې د تختې پر مخ وليکي ، بيا څلور نور زده کوونکي غوره کوي او ورته لارښوونه کوي تر څو هر يو له بې ترتيبه کلمو څخه مفيدې جملې جوړې کړي.<br>– محترم ښوونکی د حروف جر په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي له عمل او کار څخه يې خبروي ، او د څلورم تمرين د ورکړل شوي مثال نه په اِستفادې يې پوهوي. لکه: درس محمد في المدرسةِ.<br>– محترم ښوونکی بيا د څلورم تمرين ورکړل شوي ځوابونه د دوو زده کوونکو | زده کوونکی لــه بــې ترتيبه کلمو څخه جملې جوړوي.<br>– أين تريد أن تذهبَ<br>– لماذا تــذهب اِلــى کابل.<br>– سأدرسُ فــي کليــةِ الشريعةِ.<br>– أرجو لک التوفيــق و النجاح.<br><br>زده کوونکی پوښــتنې جوړوي: |

| | | |
|---|---|---|
| | په واسطه د تختې پر مخ ليکي او نورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو دغو ځوابونو ته پوښتنې جوړې او د ځوابونو مخې ته يې وليکي.<br>– محترم ښوونکی د جر هغه حرفونه چې په جملو کې اِستعمال شوي، زده کوونکو ته ښايي هغوی عمل او کار پر وروستيو اسمونو او د جر علامې دوی ته ورپيژني.<br>– محترم ښوونکی د درس شپږم تمرين د تختې پر مخ ليکي او له زده کوونکو غواړي چې د ورکړل شويو کلمو نه په اِستفادې خالي ځايونه ډک کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>– محترم ښوونکی د اُتم تمرين کلمې چې د لغاتو زيرمه ده د ټولگی په وړاندې پر زده کوونکو معنا او پر تخته يې ليکي: الاِجازةُ: رخصتی. السياحةُ: چکر. أستعدُ: تياريږم. العودةُ: بيرته گرځيدنه.<br>الأقرباءُ: خپل خپلوان.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د کتاب اووم تمرين زده کوونکو ته کورنۍ وظيفه ورکوي. | – أين درس محمد ؟<br>– هل تناولتَ الغداء ؟<br>– أين ذهبتَ ؟<br>– من أين اِشتريتَ السمکَ ؟<br>– کم قلماً عندک ؟<br>– من هو في البيتِ ؟<br>زده کوونکی د تمرين خالي ځايونه ډکوي.<br>أنا جئتُ (في) الأسبوع الماضي.<br>– هذا شهر ثان (من) السنة الدراسيةِ.<br>– سأَذهبُ (اِلی) حديقةِ الحيوانات. |

## لوست: اتلسم (لومړۍ برخه).

**عنوان: في الفندق.**

**مخ: ۷۹ – ۸۰**

**وخت: ۴۵ دقیقې** (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې**

زده کوونکي باید:

– د درس متن سم ولوستلی شي.

– د نویو کلمو معناوې یادې کړي.

– د تمرین پوښتنو ته ځوابونه وویلی شي.

**اضافي معلومات.**

**د کلمو معنا:**

تفضَّل: مهرباني وکړئ. أسعار. بیې. وجبة: د ډوډۍ یو وخت. لوحدي: یوازې ماته. حسناً: ډېر ښه.

د تدریس لاري چاري: نمونه يي لوست ، تکرار ، خبرې اترې (حوار) سوال او ځواب ، ځان ته لوست.

د تدریس مرستندویه توکې: درسي کتاب ، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | ● ښوونکی له سلام، پوښتنې او ټولګي له برابرولو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک یوه جمله لیکلی شي چې په هغې کې د جر حرفونه اِستعمال شوي وي ؟<br>– د نوي درس د انګیزې پیدا کولو لپاره پوښتنې مطرح کوي:<br>– څوک ویلی شي چې د مسافر تم ځای (هوټل) ته په عربي کې څه وایي ؟<br>دلوست وړاندې کول: | |
| ۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی د ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان (في الفندق) د تختې پر مخ لیکي او وایي چې دا د نن ورځې درس دی.<br>– محترم ښوونکی د درس متن یو ځلې لولي، او له زده کوونکو غواړي چې جملې دې د ده تر شا تکرار کړي.<br>– ښوونکی بیا درس پر زده کوونکو د محاورې (خبرو اترو) په ډول تیروي او دوی ته لارښوونه کوي چې محاوره په داسې ډول تر سره کړي چې پرته له دې چې د مسافر او یا د هوټل د کارکوونکي نوم واخلي باید یو تن د مسافر او دویم د کارونکي رول تر سره کړي.<br>– محترم ښوونکی د لومړي تمرین د حل نه وړاندې د اِستفهام د ادواتو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي او دوی ته وایي: هر کله که پوښتنه کول غواړو نو باید د اِستفهام له ادواتو استفاده وکړو ، چې هغه عبارت دي له: | زده کوونکي د ښوونکې تر شا جملې تکراروي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | أين ، كيف ، ماذا ، ما ، كم ، من ، متى ، أى.<br>د مثال په توګه:<br>أين تذهبُ ؟ كيف حالک ؟<br>ما اسمکَ ؟ ماذا تفعل ؟<br>– كم تلميذاً في صفكم ؟<br>او بيا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د اِستفهام ادوات له مثالونو سره په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– محترم ښوونکی د لومړي تمرين د حل لپاره پنځه تنه زده کوونکي غوره کوي، له دوی غواړي چې هر يو دې په خپل وار د تختې مخې ته راشي، يوه پوښتنه او ځواب دې لاندې په تخته وليکي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک يوه جمله ويلی شي چې په هغې کې د اِستفهام ادوات اِستعمال شوي وي؟<br>– څوک د دغو کلمو معناوي (ويلی شي) (الموظفُ ، جواز السفر ، تفضل).<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی دويم تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي<br><br>**د درس پيغام:**<br>زده کوونکي پر دې پوهول کيږي چې هوټلونو کې کوم کار او رويه حاکمه ده او څنګه يې له کارکوونکو سره چال چلند وشي. | زده کوونکی لومړی تمرين حلوي:<br>– حدث هذا الحوار في الفندق؟<br>دار الحوار بين المسافر و الموظف.<br>– يريدُ المسافر بعضَ المعلوماتِ. |

## لوست: اتلسم (دویمه برخه).

**مخ: ۸۲ – ۸۱.**

**وخت: ۴۵** دقیقې (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې**

زده کوونکي باید:

– د اِستفهام ادوات وپیژني.

– د اِستفهام ادوات په جملو کې اِستعمال کړای شي.

– د اِستفهام علامه او نښه (؟) سمه وکاروي.

**اضافي معلومات:**

اِستفهام عبارت له هغه غوښتنې څخه دی چې د یو څیز حقیقت پیژندني ، شمیر ، یا تړلو صفتونو په اړه تر سره کیږي.

دِ استفهام اسماء عبارت دي له:

منِ ، ماذا ، متی ، أین ، کیف ، أی ، کم ، أیان ، أنی.

د اِستفهام حرفونه عبارت دي له: (أ – هل).

د اِستفهام اسماء تل دجملې په سر کې راځي ، او د حرف جر یا مضاف نه پرته بل کوم څیز ترې نه مخکې کیږي لکه: بمن تفکَر ؟ سیارةُ من هذه ؟

د اِستفهام علامه (؟) د اِستفهامیه جملې په اخر کې راځي ، لکه: من أین أنت ؟ کیف حالک ؟، من هذا؟.

**د کلمو معنا:**

متی أتیتَ ؟ څه وخت راغلې ؟ کیف أنتَ ؟ ته څنگه یې ؟ حاسوب: کمپیوټر. الدولّاب: الماری. الثلاجةُ: یخچال.

**د تدریس لارې:** مناقشه ، ځان ته او ډله ییز تکرار.

**د تدریس مرستندویه توکې:** درسي کتاب ، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه<br><br>۳۰ دقیقې<br><br>۱۰ دقیقې | • ښوونکی د سلام، پوښتنې او تولگي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک د تیر لوست متن سم لوستلی شي ؟<br>دلوست وړاندې کول:<br>– محترم ښوونکی له څلورو زده کوونکو غواړي تر څو هر یو په خپل وار د دریم تمرین جملې د تختې پر مخ ولیکي ، بیا له څلورو نورو زده کوونکو غواړي چې د تختې مخې ته راشي او د سمو جملو مخې ته د (✓) او غلطو جملو مخې ته (×) کیږدي.<br>– محترم ښوونکی د اسماء او د اِستفهام حروفو په اړه رڼا اچوي.<br>**ارزونه:**<br>– د پنځم تمرین نه په استفادې دوی مثالونه ورکوي ، بیا د تمرین جملې پر زده کوونکو د تختې پر مخ لیکي او له نورو زده کوونکو غواړي چې په جملو کې اسماء او د اِستفهام حروف په نښه کړي.<br>**کورنۍدنده**<br>محترم ښوونکی د کتاب له کورنۍ د ندې پرته شپږم تمرین هم زده کوونکو ته کورنۍ دنده کورکوي. | |

## نولسم لوست (لومړۍ برخه)

**عنوان:** أضرار التدخين

**مخ:** ۸۳-۸۴

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**د تدريس موخې:** زده کوونکي بايد:

- د لوست متن سم ولوستلای شي.
- نوې کلمې معنا کړای شي.
- د سګرټو او نورو نشه يي توکو له زيانونو خبر شي.

**اضافي معلومات:**

**د کلمو معنا:**

صديق: دوست — متوفر: زيات موندل — الحشيش: چرس — يدخن: سګرټ څکوي

علي: پر ما لازمه ده — لايخف: د وېرې لامل ندی — يضر: ضرر رسوي — يتلف: ضايع کوي

يتورم: پړسېږي — الکبد: ځيګر — يلتهب: ګزګ کېږي — يضيق: تنګستيا کوي

أعدک: تاسره ژمنه کوم — لن أعود: نه راګرځم — التدخين: سګرټ څکول

**د تدريس لارې چارې:**

نمونه يي لوست، مناقشه، پوښتنه او ځواب، ځانته او ډله ييز کار.

**د تدريس مرستندويه توکي:**

درسي کتاب، تخته او تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | • ښوونکی د سلام، پوښتنې او تولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي:<br>• څوک د اسماء استفهام نومونه سره له يو مثاله ويلی شي؟<br>**د نوي لوست د انګيزې د پيداکولو لپاره پوښتنه کوي:**<br>• څوک ويلی شي چې په عربي کې سګرټ څکولو ته څه وايي؟<br>دلوست وړاندې کول: | |
| ۳۰ دقيقې | • ښوونکی د ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان (أضرار التدخين) د تختې پرمخ ليکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځيروي، او نوی لوست د لوی الله ﷻ په نامه سره پيلوي.<br>• لومړی د لوست متن په لوړ اواز سره لولي او لوست د محاورې (خبرو اترو) په ډول پر څو زده کوونکو داسې تېروي چې يو د محمد او دويم د جعفر رول ترسره کوي. بيا محاوره (خبرې اترې) پر څو زده کوونکو تکراروي او په آخر کې د لوست متن معنا کوي.<br>• ښوونکی د نشه يي او الکولي مشروباتو په اړه زده کوونکو ته لازمې | |

| | | |
|---|---|---|
| | لاربنوونې وړاندې کوي او بيا د لوست لومړی تمرين پوښتنې له دوی څخه کوي. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>• څوک ويلی شي چې (تدخين) څه معنا لري؟<br>• څوک دې (لماذا حزن محمد) پوښتنې ته په عربي ځواب ويلی شي؟<br>• څوک دا (لن أعود إلى التدخين) جمله معنا کولی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست دويم تمرين چې د ګډوډو کلمو ترتيبول دي زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکړي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>زده کوونکي بايد د سګرټ څکولو او نورو ناوړو څيزونو د روږدېدلو له زيانونو څخه خبر شي او نورو ته د نصيحت د کولو طريقه او لاره زده کړي. | |

## نوولسم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** أضرار التدخين

**مخ:** ۸۵-۸٦

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- د مطلق مفعول معنا وپېژني.
- مطلق مفعول په جملو کې وکارولای شي.
- مفرد متكلم ضمير سره جملې جوړې کړای شي.

**اضافي معلومات:**

مطلق مفعول: هغه مصدر دی چې د فعل له جنس او یا د هغه له معنا څخه لاسته راځي، لکه: اصبر صبرا جميلاً. او یا دا آیت کریمه (و کلم الله موسی تکلیماً)

مطلق مفعول د درې هدفونو لپاره راځي:

۱- د فعل د معنا د ټینګار په موخه، لکه: اجتهد أيها التلميذ اجتهاداً.

۲- د فعل د ډول د بیان په موخې، لکه: سرت سيراً حسناً.

۳- د فعل د پېښېدو د شمېر په اړه، لکه: ضربته، ضربة، ضربتين او ضربات.

**د کلمو معنا:**

**د تدریس لارې چارې:**

مناقشه، پوښتنه او ځواب، ځانته او ډله ییز کار.

**د تدریس مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه<br><br>۳۰ دقيقې | ● ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>● څوک تېر لوست ویلې شي؟<br>● دلوست وړاندې کول:<br>● ښاغلی ښوونکی نوی لوست د لوی الله ﷻ په نامه سره پیل کوي او د دریم تمرین کلمې په یوه کربښه کې د تختې پر مخ او د نمونې په توګه د یوې کلمې تر مخ د هغې ورته (مترادفه) کلمه لیکي، بیا زده کوونکو ته لارښوونه کـــوي چې د نورو کلمو لپاره هم مترادفې کلمې ومومي او د تختې پر مخ يې وليکي.<br>● ښاغلی ښوونکی د مطلق سمفعول په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي، بیا څلورم او پنځم تمرین دوی ته حل کوي، او دوی ته دا ښايي چې د دغـــو تمرینونو کلمې (حزنا، نصيحة، خوفا، لعبا، شربا، جريا، أكلة) مفعول مطلق دی. همداسې د دغه تمرين جملې پر دوی تکرار او تر څنګ يې نور مثالونه هم دوی | زده کوونکي مترادفې کلمې تکراروي او بيا يې په خپلو کتابچو کې ليکي:<br>متوفر کثير<br>تشعر تحس<br>أعود أرجع<br><br><br><br><br>زده کوونکي په خپلو |

| | | |
|---|---|---|
| | **ته وړاندې کوي ترڅو زده کوونکي د مفعول مطلق په معنا وپوهېږي او په جملو کې يې وکارولای شي.**<br>• **ښاغلی ښوونکی زده کوونکي پر دوو ګروپونو ويشي او دوی تــه دنــده ورکوي چې د اووم تمرين د ورکړل شوي مثال نه په ګټه اخېستنې ســره درې نورې جملې هم جوړې او په خپلو کتابچو کې يې وليکي.**<br>• **بيا د هر ګروپ استازی د تختې مخې ته راغواړي او جوړې کړې جملــې پرې دتختې پر مخ ليکي، ښوونکی له دوی سره مرسته کوي او هڅوي يې.**<br>• **ښوونکی د اتم تمرين کلمې د تختې پر مخ ليکي او معنا کوي، بيــا دغــه کلمې په لوړ اواز سره لولي او له زده کوونکو غواړي چې تر شا يــې تکــرار کړي، همداسې په وار ځو زده کوونکي راغواړي ترڅو د تختې له مخې دغــه کلمې په لوړ اواز سره ولولي، لکه:**<br><br>**ارزونه:**<br>• **ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لاندې کلمې معنا کړي:**<br>**الخمر: شراب الحشيش: چرس العلاج: درملنه**<br>**السرطان:يو ناوړه ناروغي الوقاية: د تقويه کولو له لارې درملنه مغمى عليه: بې هوښه**<br>**الإدمان: په يو څيز عادت کېدل**<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>**ښوونکی (الواجب المنزلي) او تر څنګ يې شپږم تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.** | **کتابچو کې جملې ليکي.**<br><br>**زده کوونکي د اتم تمرين کلمې په لوړ اواز سره لولي.** |

## شلم لوست (لومړۍ برخه)

**عنوان:** التسامح

**مخ:** ۸۷-۸۸

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست متن سم ولوستلای شي.
- نوې کلمې معنا کړای شي.
- د غضب او غوسې په وخت کې د زغم کولو ګټې باید وپېژني.

**اضافي معلومات:**

**د کلمو معنا:**

جارية: وینځه — التسامح: تېرېدنه — یقال: ویل کېږي — جعلت: پیل یې وکړ

تسکب: تویوي — الإبریق: کوزه — جرحه: پرهر — الکاظمین: زغمونکي

الغیظ: غوسه — العافین: عفوه کوونکی — حرة: آزاده

**د تدریس لارې چارې:**

نمونه یي لوست، مناقشه، پوښتنه او ځواب، ځانته او ډله ییز کار.

**د تدریس مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | • ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>• څوک دوه داسې جملې د تختې پرمخ لیکلې شي چې په هغې کې مفعول مطلق کارول شوی وي؟<br>د نوي لوست د انګېزې د پیداکولو لپاره پوښتنې کوي:<br>• څوک د تېرېدنې معنا په عربي ژبه کولی شي؟<br>ښوونکی د ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان (التسامح) په غټ خط د تختې پرمخ لیکي. | زده کوونکي د لوست متن د ښوونکي د لارښوونې سره سم په چوپتیا لولي |
| ۳۰ دقیقې | دلوست وړاندې کول:<br>• زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیروي او نوی لوست د لوی الله ﷻ په نامه سره پیل کوي.<br>• ښوونکی لومړی د لوست متن په لوړ اواز سره لولي او بیا یې پر څو زده کوونکو تکراروي او دوی ته لارښوونه کوي چې یوځل یې په چوپتیا سره هم ولولي، ښوونکی بیا د لوست متن لولي او معنا کوي یې.<br>• ښوونکی دوو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د دویم تمرین جملې | |

| | | |
|---|---|---|
| | د تختې پرمخ وليکي، بيا له څلورو نورو زده کوونکو غواړي چې هر يو په خپل وار سره يوه يوه جمله ولولي او د سمې جملې مخې ته (✓) نښه او د ناسمې جملې مخې ته د (✗) نښه کېږدي.<br>● ښوونکی د لومړي تمرين پوښتنې له زده کوونکو پوښتي او دوی ته لارښوونه کوي چې د لوست د متن نه په ګټه اخېستنې ورته ځوابونه ومومي. | |
| | **ارزونه:**<br>● څوک د لوست متن سم لوستی شي؟<br>● څوک به د (الإسلام دين التسامح و المسلمون متسامحون) جمله معنا کړي؟<br>● څوک د (حرة) کلمې ضد کلمه ويلی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دريم تمرين زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکوي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>زده کوونکي بايد وهڅول شي چې د قهر په وخت کې خپله غوسه پټه کړي او د اسلام د مخکښانو په هغو اخلاقو خبر شي چې د قهر په وخت کې به يې خپله غوسه پټوله. | ۱۰ دقيقې |

## شلم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** التسامح

**مخ:** ۸۹-۹۰

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- د جمع مذکر سالمه معنا وپېژني.
- جمع مذکر سالم په جملو کې استعمال کړای شي.
- جمع مذکر سالم مفرد حالت ته واړولې شي.

**اضافي معلومات:**

**جمع نوم:** هغه نوم دی چې پر درو یا له هغې پر ډېرو باندې دلالت کوي.

- جمع پر درې ډوله ده:

۱- جمع مذکر سالم

۲- جمع مؤنث سالم

۳- جمع تکسیر

- جمع مذکر سالم: عبارت له هغه اسم څخه دی چې پر درو یا ډېرو باندې دلالت کوي، او د مفرد کلمې بناء او جوړښت پکې نه وي اړول شوی او د "واو" او "نون" په زیاتېدو سره د "رفع" په حالت کې راځي، لکه: جاء المسلمون، صام المسلمون. او د نصب او جر په حالتونو کې د "یا" او "نون" په زیاتېدو سره لاسته راځي، لکه: رأیت المسلمین، مررت بالمسلمین.

- "واو" رفع نښه ده چې د ضمې (پېښ) پر ځای، "یا" د نصب او جر نښه ده چې د فتحې او کسرې پرځای کارول کېږي.

- د تنصیص نښه چې د (" ") علامې په واسطه نښه کېږي پر دې دلالت کوي چې هره خبره او جمله چې د هغه په لفظونو د یوچا څخه نقل کېږي د دغو علامو ترمنځ ابښودل کېږي، لکه: "إنما المؤمنون إخوة "

- **د کلمو معنا:**

| صادق: ریښتینی | کاذب: دروغجن | مدرس:ښوونکی | مجتهد: کوښښي |
|---|---|---|---|
| نائمون: ویده | قائمون: درېدونکي | واقفون: ولاړ | جالسون: ناست |
| قاعدون: ناست | | | |

**د تدریس لارې چارې:**

مناقشه، پوښتنه او ځواب، ځانته او ډله ییز کار.

**د تدریس مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵<br>دقیقې<br>مقدمه | • ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو، ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې لـــه کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>• څوک دا (اذهبی فأنت حرة لوجه الله) جمله معنا کولی شي؟<br>• ښوونکی د لوست عنوان د تختې پر مخ لیکي.<br>• زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیروی او نوی لوست د لوی الله ﷻ په نامه سره پیل کوي.<br>• دلوست وړاندې کول: | |
| ۳۰<br>دقیقې | • ښوونکی لومړی دجمع مذکر سالم په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي او د څلورم تمرین د مثال نه په ګټه اخیستنې سره دوی ته یو مثال وړانــدې کوي.<br>• ښوونکی د پنځم تمرین دوه مثاله چې په هغوی کې د مفرد کلمې سره (واو او نون) او (یاء او نون) زیات شوي جمع مذکر سالم زده کوونکو ته جوړوي او بیا یې د تختې پر مخ لیکي، لکه:<br>مجاهد:<br>مجاهدون هؤلاء مجاهدون<br>مجاهدین رأیت مجاهدین<br>معلم:<br>معلمون هؤلاء معلمون<br>معلمین رأیت معلمین<br>د تمرین پاتې مثالونه هم د تېر شوو مثالونو په رڼا کې پر زده کوونکـــو حـــل کوي.<br>• ښوونکی زده کوونکو ته وایي: هرکله چې د مفرد مذکر عاقل اسم فاعل په پای کې (واو او نون) او یا هم (یاء او نون) زیات کړو نو دغه جمع مذکر سالم ته اوړي، او که وغواړو چې جمع مذکر سالم مفرد حالت ته واړوو نـــو (واو او نون) او (یاء او نون) یې له آخره لرې کوو. بیا د شپږم تمـــرین دوه مثاله د نمونې په توګه دوی ته وړاندې کوي، لکه:<br>محسنون محسن<br>نائمون نائم | زده کوونکي له مفردو کلمو سره (واو او نون) او (یاء او نون) زیاتوي او جمع مذکر سالم جوړوي.<br>مؤمنون مؤمنین<br>صادقون صادقین<br>کاذبون کاذبین<br>مدرسون مدرسین<br><br>زده کوونکي مفردې کلمې لیکي:<br>قادم جالس<br>مجتهد صائم<br>واقف کاتب<br>قاعد |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>• ښوونکی بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تمرین پاتې مثالونه هم په وار سره د تختې پر مخ حل کړي، هغه له دوی سره مرسته کوي او هڅوي یې.<br>• ښوونکی د تنصیص د علامو په اړه زده کوونکو ته لارښوونې کـــوي او د اتم تمرین جملې د مثالونو په توګه دوی ته وړاندې کوي<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د لوست نهم تمرین (الواجب المنزلي) زده کوونکو ته کورنۍ وظیفه ورکوي. | |

## یوویشتم لوست (لومړۍ برخه)

**عنوان:** السلامة

**مخ:** ۹۱–۹۳

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست متن ولوستلای شي.
- د نوي لوست کلمې معنا کړای شي.
- د محیط او چاپېریال ساتنې په اهمیت خبر شي او دهغې په پاک ساتلو کې کوښښ وکړي.

**اضافي معلومات:**

**د کلمو معنا:**

السلامة: روغتیا الإسراف: له ضرورته زیات مصرفول. جراثیم: مکروبونه

تشمل: رانغاړي یې یجهلها: نه پرې پوهېږي نجوع: وږي کېږو نشبع: مړېږو

**د تدریس لارې چارې:**

نمونه یي لوست، مناقشه، پوښتنه او ځواب، څانته کار.

**د تدریس مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | • ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>• څوک د جمع مذکر سالم تعریف او دوه مثالونه ویلې شي؟<br>**د نوي لوست د انګېزې پیداکولو لپاره پوښتنه کوي:**<br>• څوک ویلی شي چې روغتیا ته په عربي کې څه وایي؟<br>• ښوونکی له ځواب موندلو وروسته د نوي لوست عنوان په غټ خط د تختې پرمخ لیکي. | زده کوونکي د لوست پر متن کې محاوره ترسره کوي. |
| ۳۰ دقیقې | • دلوست وړاندې کول:<br>• ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته څیروي، نوی لوست د لوی الله ﷻ په نامه سره پیل کوي، لومړی د لوست متن په لوړ اواز سره لولي، او بیا لوست پر زده کوونکو د محاروې (خبرو اترو) په ډول په داسې حال کې ترسره کوي چې خپله ښوونکی د معلم او دوه تنه زده کوونکو یو د عثمان او دویم د ماجد رول ترسره کوي. په پای کې یوځل بیا د لوست متن لولي او معنا کوي یې:<br>• ښوونکی د دویم تمرین جملې پر دوو ټکرو زده کوونکو د تختې پرمخ لیکي، بیا یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي ترڅو د تختې د مخ | |

| | | |
|---|---|---|
| | جملې ولولي او پاتې زده کوونکي يې ترشا تکرار او په پای کې جملې ورته معنا کړي.<br>• ښوونکی بيا څلور زده کوونکي ټاکي او لارښوونه ورته کوي چې هر يو د سمې جملې مخې ته د (✓) نښه او ناسمې جملې مخې ته د (✗) نښه کېږدي.<br>• ښوونکی لومړی تمرين له زده کوونکو پوښتې او دوی ته لارښوونه کوي چې د لوست له متن نه په ګټه اخېستنې ورته ځوابونه ومومي. | |
| ١٠ دقيقې | **ارزونه:**<br>• څوک دا (كيف نحفظ أنفسنا من الجراثيم) جمله معنا کولی شي؟<br>• څوک دا (ما معنى السلامة) پوښتنه په عربي ځواب ويلې شي؟<br>• څوک دا کلمې معنا کولی شي؟<br>الإسراف: الجراثيم: الأكل:<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دريم تمرين زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکوي.<br>**د لوست پيغام:**<br>زده کوونکي بايد د روغتيا، سلامتۍ او د هغې د ساتلو په وسايلو پوه شي چې چاپېريال ساتنه او د هغې پاکي يې مهم وسايل دي. | |

## یوویشتم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** السلامة

**مخ:** ۹۴-۹۶

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- د جر او مجرور معنا وپېژني.
- اسم مجرور په جملو کې په نښه کړای شي.
- زده کوونکي د کلمو ضد وپېژني.
- زده کوونکي مترادفې (ورته) کلمې وپېژني.

**اضافي معلومات:**

**اسم مجرور:** هر کله چې حروف جر له کومه اسمه دمخه راشي، هغه اسم ته جر ورکوي او په اسم مجرور نومول کېږي، دې نه اخوا که چېرې یو اسم بل اسم ته مضاف شي، مضاف الیه اسم هم مجرور نومول کېږي.

- په حروف جر باندې د مجرور مثال: ذهبت إلى (المدرسة). په دې جمله کې "المدرسة" د "إلى" پر حرف مجرور واقع شوي دی.
- په اضافت باندې د مجرور مثال: هذا کتاب محمد. په دې جمله کې "محمد" کلمه مجرور واقع شوې، ځکه چې د "کتاب" کلمې ته مضاف شوی دی.
- حروف جر، د اسمونو آخر ته مستقیماً (نېغ په نېغه) کسره ورکوي، لکه:

خرجت من المدرسة　　　　شاهدت الحیوان فی الحدیقة

**د کلمو معنا:**

فشل: ناکام شو، ماته یې وخوړه　　رسب: ناکام شو　　الغرف: کوټې

تسکن: اوسېږي　　تعیش: ژوند کوي

**د تدریس لارې چارې:**

مناقشه، پوښتنه او ځواب، ځانته او ډله ییز کار.

**د تدریس مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵<br>دقیقې<br>مقدمه | ● ښاغلی ښوونکی له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>● څو ک دې (کیف نحفظ أنفسنا من الجراثیم) پوښتنې ته په عربي کې ځواب ویلې شي؟<br>● ښوونکی د څلورم تمرین کلمې زده کوونکو ته په لوړ اواز لولي او له زده کوونکو غواړي چې تر شاېې تکرار کړي. بیا د یاد شوي تمرین دوه مثاله چې دا کلمې یې د ضدونو سره تړې زده کوونکو ته د تختې پرمخ لیکي، لکه:<br>حق.......... باطل یجهلها............ یعلمها | <br><br><br>ښوونکی کلمې له ضدونو سره تړي:<br>تتجمع تتفرق<br>بعیداً قریباً<br>تأخر تقدم |
| ۳۰<br>دقیقې | ● ښوونکی بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تمرین پاتې کلمې د پنسل په واسطه یې له ضدونو سره وتړي او دوی سره مرسته کوي.<br>● ښوونکی د پنځم تمرین کلمې د تختې پر مخ لیکي او زده کوونکو ته یې په لوړ اواز سره لولي او معنا کوي یې.<br>● ښوونکی بیا یو زده کوونکی راغواړي، لارښوونه ورته کوي ترڅو د تختې مخې ته راشي او په لوړ اواز سره کلمې ولولي، پاتې زده کوونکي د ده ترشا کلمې تکراروي، ښوونکی بیا د یاد شوي تمرین دوه کلمې له هغو مترادفو (ورته) کلمو سره وصلوي او د تختې پرمخ یې حل کوي، لکه:<br>جسمک ................................... بدنک<br>– بیا دوه نور مثاله هم پر دوو زده کوونکو د تختې پرمخ حل کوي او له پاتو څخه غواړي چې لومړی د تمرین حل په کتابچو کې ولیکي او بیا دې په خپلو کتابونو کې هم د پنسل په واسطه سره وصل کړي، ښوونکی له دوی سره مرسته کوي او هڅوي یې.<br>● ښوونکی زده کوونکي پر دوو ګروپونو ویشي او دوی ته لارښوونه کوي چې د شپږم تمرین ځوابونو ته دې هر یو ګروپ دوه دوه پوښتنې جوړې او استازی دې بیا تیارې شوي پوښتنې د تختې پرمخ ولیکي، ښوونکی دوی سره مرسته کوي او هڅوي یې.<br>● ښوونکی د حروف جر او اسم مجرور په اړه زده کوونکو ته لازم معلومات وړاندې کوي، بیا اووم او اتم تمرین دوی ته لولي او تکراروي یې.<br>● اسم مجرور او علامې یې دوی ته عملاً ښایي، لکه په دې جمله کې (الجراثیم توجد فی الهواء و فی الماء)<br>"الهواء" او "الماء" کلمې په دغو جملو کې اسماء مجروره دي، ځکه "فی" پرې داخل شو او دوی ته یې جر ورکړی. او په (کتب الولد بالقلم) جمله کې "القلم" اسم مجرور دی ځکه د جر حرف (ب) پرې داخله شوی. | <br><br><br>زده کوونکي مترادفې کلمې سره یوځای کوي:<br>تدع تترک<br>الحجرات الغرف |

| | | |
|---|---|---|
| | ● ښوونکی د لسم تمرين کلمې د تختې پرمخ ليکي او معنا کوي يې، دغه کلمې په لوړ اواز سره لولي او له زده کوونکو غواړي چې دده ترشا يې تکرار کړي.<br>● ښوونکی بيا څو زده کوونکي راغواړي او دا لارښوونه ورته کوي چې د تختې د مخ کلمې په لوړ اواز سره ولولي.<br>● ښوونکی پر زده کوونکوباندې لاندې کلمې معنا کوي:<br>الجرح: زخمي الأقذار: چټلي البيئة: چاپېريال<br>البذر: تخم الفحص: معاينه کول العلاج: درمل<br>القمامة: چټلي او کثافات سلة المهملات: کثافت دانۍ<br>المرض: ناروغي<br>الدواء: دارو او درمل الوقاية: مخکښنه درملنه/ساتنه السمر: د شپې ناسته<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده (الواجب المنزلي) ورکوي. | |

## لوست: دوه ویشتم (لومړۍ برخه).

**عنوان:** طلب الاِجازة.

**مخ:** ۹۷.

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د درس متن ولوستلای شي.
- د نویو کلمو معناوې ده کړي.
- په عربي ژبه رقعه لیکل زده کړي.

د ښوونکي لپاره اِضافي معلومات:

د لومړۍ برخې اهداف دې په پام کې ونیول شي.

**د کلمو معناوې:**

طلب الاِجازة: د درخصتی رقعه. لا أستطيعُ: نه شم کولی. سعادة: عالي جناب. لأني: د دې لپاره چې زه. ارجو: امید او ارزو لرم. أن تقبلوا: چې ویې مني. تسامحوني: ما ته تیر شي. ما وبښئ. أشكركم: تاسې نه مننه کوم.

**د تدریس لارې چارې:** نمونه یې لوست ، مناقشه ، سوال او ځواب ، ځان ته او ډله ییز.

**د تدریس مرستندویه توکي:** درسي کتاب ، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | • ښاغلی ښوونکی له سلام، پوښتنو او تېولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>- څوک حروف جر ښودلی شي ؟ او دوه داسې مثالونه راوړل شي چې په هغې کې حروف جر اِستعمال شوي وي ، او بیا اِسم مجرور هم په ګوته کړي ؟<br>- د نوي درس د انګیزې پیدا کولو لپاره پوښتنې مطرح کوي:<br>- څوک ویلی شي چې په عربي کې د رخصتی رقعې ته څه وایې ؟ | |
| ۳۰ دقیقې | د لوست وړاندې کول:<br>- ښوونکی له ځواب موندلو نه وروسته د نوي درس عنوان د (طلب الاِجازة) د تختې پر مخ لیکي.<br>- ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیروي، نوی لوست د لوی الله جل جلاله په نامه سره پیلوي او بیا یې پر څو زده کوونکو تکراروي. ښوونکی د اخر ځل لپاره هم د درس متن لولي او بیا یې معنا کوي.<br>- ښوونکی د نوي درس متن پر دوو زده کوونکو د تختې پرمخ لیکي تر څو دوی په عربي کې د رخصتۍ رقعه ولیکلی شي.<br>- ښوونکی د لومړي تمرین پوښتنې له زده کوونکو څخه کوي او دوی ته | |

| | | |
|---|---|---|
| | وايي چې د درس له متن نه په اِستفادې ورته ځوابونه ومومي. | |
| | **ارزونه:**<br>– څوک د درس متن سم لوستی شي ؟<br>– څوک د درس متن ژباړلی شي ؟<br>– څوک دا جمله (لا أستطيعُ الحضور اِلی المدرسةِ) معنا کولی شي ؟ | ۱۰ دقيقې |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دويم تمرين زده کوونکو ته کورنۍ وظيفه ورکوي. | |
| | **د درس پيغام:**<br>زده کوونکي بايد د عريضې او ورق ليکلو په لار پوه شي او تر څنگ يې بايد په هغو الفاظو خبروي چې ادب پکې مراعات کيږې. | |

## لوست: دوه ویشتم (دویمه برخه).

**عنوان:** طلب الاِجازةِ.

**مخ:** ۹۸ – ۱۰۰

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

– د مضاف او مضاف اِلیه معنا وپیژني.

– مضاف مضاف اِلیه ته واړولې شي.

– مضاف او مضاف اِلیه په جملو کې اِستعمال کړای شي.

**اضافي معلومات:**

اضافت: عبارت له دې څخه چې د یو اسم نسبت (تړاو) بل اِسم ته وشي.

لکه: هذا کتاب علي ، هغه اِسم چې بل اِسم پر هغې پورې تړل کیږي هغه مضاف اِلیه دی لکه (علي).

– مضاف اِلیه د نسبت په سبب مجرور واقع کیږي خو خپله د مضاف اِعراب بیا پر جملې د موقعیت پورې اړه لري ، لکه: هذا کتاب علي. أخذتُ کتابَ علي.

په لومړی جمله کې (کتاب) خبر واقع شوی چې مرفوع ده، په دویمه جمله کې مفعول به واقع شوي چې منصوب ده.

– هر کله چې مضاف مثنی یا جمع وي نو د نون حرف یې له آخره حذف کیږي او همداسې که مضاف تنوین ولري نو تنوین یې هم ترې حذف کیږي.

**د کلمو معنا:**

عند: سره. الاستاد الفاضل. استاد. الأخ المحترم: محترم ورور. صدیقي العزیز: گران دوست.

**دتدریس لارې چارې:** مناقشه ، سوال او ځواب ، ډله ییز ، تکرار.

**د تدریس مرستندویه توکي:** درسي کتاب ، تخته و تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه<br><br><br>۳۰ دقیقې | • – ښاغلی ښوونکي د سلام، پوښتنو او ټولگي له برابرولو د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>– څوک په عربي ژبه کې د رخصتۍ رقعه لیکلی شي ؟<br>دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیروي او نوی درس د لوی الله جل جلاله په نامه سره پیلوي.<br>– ښوونکی لومړی زده کوونکو ته د مضاف او مضاف اِلیه په اړه معلومات ورکوي او له دریم تمرین نه په اِستفادې دوی ته مثال وړاندې کوي او بیا د تمرین په پاتې مثالونو کې دوی ته مضاف او مضاف اِلیه ښایې.<br>د مثال په ډول: په دې جمله کې (طلب الاِجازةِ). (طلب) مضاف او (الاِجازةُ) مضاف اِلیه واقع شوی. | |

– په (مدرسة الاِمام أبي حنيفة) مضاف اِليه دی.
– ښوونکی همداسې زده کوونکو ته دا ټکي هم وړاندي کوي چې مضاف اليه تل مجرور وي.
– ښوونکی بيا له ياد شوی تمرين دوه مثالونه هم د تختې پر مخ ليکي ، او له دوو زده کوونکو غواړي چې په جمله کې مضاف او مضاف اِليه په نښه کړي.
– ښوونکی د څلورم تمرين کلمې د تختې پر مخ ليکي او معنا کوي يې ، بيا له تمرين دوه مثالونه چې د مضاف اليه جوړول دي د نمونې په توګه زده کوونکو ته وړاندي کوي ، لکه: مدير المدرسةِ (مدير) مضاف او (المدرسة) مضاف اِليه ده. مدرسة ابي حنيفة.
– ښوونکی بيا د تمرين دوه نور مثالونه هم پر زده کوونکو کار کوي او دوی ته لارښوونه کوي چې د درس له متن نه په اِستفادې مضاف اليه جوړ کړي.
– ښوونکی پنځم تمرين د تختې پر مخ ليکي او يو مثال يې د نمونې په توګه په جمله کې استعمالوي ، لکه: فضيلة الشيخ لم أفهم الدرس.
پاتي نور مثالونه پر زده کوونکو کار کوي.
– ښوونکی همداسې زده کوونکو ته يو له بل نه د غوښتنې او يا هم له ښوونکو نه د سوال لاره او طريقه ښايې لکه چې په تمرين کې ذکر شو چې په ډير مؤدبانه توګه وه.
– ښوونکی زده کوونکي پر درې مساويانه ډلو ويشي ، او هر يو ته دا وظيفه ورکوي چې د شپږم تمرين ورکړل شويو ځوابونو ته پوښتنې جوړې او د تختې پر مخ يې وليکي.
– ښوونکی د اووم تمرين کلمې د تختې پر مخ ليکي او د شد ّ)) او علامې په اړه يې زده کوونکو ته معلومات ورکوي او بيا له دوی غواړي چې په خپلو کتابچو کې يې وليکي.
– ښوونکی د أتم تمرين کلمې زده کوونکو ته د تختې پر مخ ليکي او له دوی غواړي چې د ده تر شا کلمې په لوړ آواز سره ولولي او بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.
– ښوونکی لاندې کلمې پر زده کوونکو معنا کوي.
السماحة: اِجازه ورکول  الشكر الجزيل: ډيره مننه.
التحيةُ: سلام ورکول. المكرم: عزتمند.
السمو: لوړ مرتبه. المعالي: د قد وړ اوچت ، جناب.

**کورنۍ دنده:**
محترم ښوونکی (الواجب المنزلي) زده کوونکو ته کورنۍ وظيفه ورکوي.

زده کوونکي مضاف او مضاف اليه په نښه کوي.
غرفة المدرسين.
رحمه الله.

زده کوونکي مضاف اليه جوړوي:
تلميذ الصف الثامن.
سامحوني عن الغياب.
زده کوونکي پاتي مثالونه په جملو کې اِستعمالوي.
– الأستاد الفاضل من أريد منک المعلومات.
الأخ المحترم: اِجلس في مكانک.
صديقي العزيز: أعطني كتابک.

زده کوونکي پر دې ترتيب پوښتنې جوړوي:
من أخذ الاِجازة.
من يدرس في ثانوية غازي.
– لماذا لم يحضر جميل.

**لوست: درویشتم (لومړۍ برخه).**

**عنوان:** معرفة الأوقات.

**مخ:** ۱۰۱ – ۱۰۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د درس متن ولوستلای شي.
- د نویو کلمو معناوې و پیژني.
- سبا او بیګا مختلف وختونه (سهار ، څاښت، مازدیګر ، ماښام ) وپیژني.
- ساعت ، دقیقه او ثانیې وپیژني.

**اضافي معلومات:** دلومړۍ برخې اهداف په پام کې نیول پکار دي.

**د کلمو معناوې**

**اوقات:** د وختونو جمع. عقارب: د عقرب جمع. نحیف: ډنګر.

سمین: چاغ. کتاباً موقوتا: د وخت مطابق فرض. ماذا تعني: څه مطلب ؟ تساوي: برابره ده.

**دتدریس لارې:** نمونه یي لوست ، مناقشه ، محاوره (خبرې او اترې) ، سوال او ځواب ، ځان ته.

**د تدریس مرستندویه توکي:** درسي کتاب ، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | • – ښاغلی ښوونکي د سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>– څوک دوه داسې جملې لیکلي شي چې په هغې کې مضاف او مضاف اِلیه کارول شوي وي ؟<br>– د نوي درس د انګیزې پیدا کولو لپاره پوښتنې مطرح کوي:<br>– څوک ویلی شي چې وخت پیژندلو ته په عربي کې څه وایې ؟ | |
| ۳۰ دقیقې | دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی له ځواب موندلو نه وروسته د نوي درس عنوان (معرفة الأوقات) د تختې پر مخ لیکي ، زده کوونکی خپلو کتابونو ته ځیر کوي او نوی درس د لوی الله جل جلاله په نامه سره پیلوي.<br>ښوونکی لومړی د درس متن په لوړ آواز سره لولي. او بیا یې پر څو زده کوونکو د محاورې (خبرو اترو) په ډول تر سره کوي. ښوونکی د آخر ځل لپاره هم د درس متن لولي او معنا کوي یې.<br>– ښوونکی د لومړني تمرین پوښتنې له زده کوونکو پوښتي او هغوی ته لارښوونه کوي چې د درس له متن نه په اِستفادې ورته ځواب وویلی شي. | زده کوونکی متن ته ګوري.<br><br>زده کوونکی د لومړي تمرین پوښتنې له ښوونکی سره د مناقشې په توګه مطرح کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>- څوک درس سم لوستی شي ؟<br>- څوک کولی شي د شپې او ورځې د پنځو وختونو لمونځو نومونه واخلي ؟<br>- څوک دا جمله (ستون ثانیة تساوي د قیقة واحدة) معنا کولی شي ؟ | |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته څلورم تمرین چې د خالي ځایو ډکول دې کورنۍ وظیفه ورکوي.<br><br>**د درس پیغام:**<br>زده کوونکي باید د وختونو په أهمیت او له عبادت سره د هغې په تړاو پوه شي.<br>زده کوونکي باید و هڅول شي چې د وخت پیژندنه د ژوندون د کامیابۍ مهم لامل وګڼي. | |

## لوست درويشتم: (دويمه برخه).

**عنوان:** معرفة الأوقات.

**مخ:** ۱۰۳ – ۱۰٦

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**د تدريس موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

– جمع مؤنث سالم و پيژني.

– جمع مؤنث په جملو کې اِستعمال کړای شي.

– مفردې کلمې جمع مؤنث سالم ته واړولې شي.

**اضافي معلومات:**

**جمع مؤنث سالم:** هغه اسم دی چې د اسم په آخر باندې د معينو حرفونو د الف او تاء په زياتولو سره له دوو څخه پر زياتو ځيزونو باندې دلالت کوي، د هغې علامه د مفرد کلمې په اخر کې د (الف او تاء) زياتيدل دي ، لکه: مسلمة ، مسلمات؛ معلمة ، معلمات ، ممرضة ، ممرضات ، طبيبة ، طبيبات.

**د جمع مؤنث سالم حکم:** جمع مؤنث سالم په ضمه (پېښ) باندې مرفوع کيږې لکه: جاءت المعلمات او دنصب حالت کې د فتحې پر ځای کسره راځي ، لکه: رأيت التلميذات في المدرسةِ.

او د مجرور توب په حالت کې پر کسرې مجروريږي ، لکه: درست الطالباتُ في حجرات واسعةٍ.

**د کلمو معنا:**

بضع: څو. النصف: نيمايي. مساء: ماښام.

**د تدريس لارې:** مناقشه ، سوال او ځواب ، ځان ته ، تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکي:** درسي کتاب ، تخته او تباشير.

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې<br><br><br><br>۳۰ دقيقې | • ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>– څوک تير درس ويلی او معنا کولی شي ؟<br>دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځير کوي او نوی درس د لوی الله جل جلاله په نامه سره پيلوي.<br>– ښوونکی لومړی دجمع مؤنث سالم زده کوونکو ته ورپيژني ، پر حکم يې خبرې کوي او د دويم تمرين نه ورته مثال راوړي.<br>– ښوونکی دجمع مؤنث سالم دجوړولو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي او د دريم تمرين له کلماتو نه په اِستفادې دوی ته مفردې کلمې پر جمع مؤنث سالم يې اړوي او بيا يې د تختې پر مخ ليکي لکه:<br>د (مسلمة) کلمې په اخرکې د (الف او تا) په زياتېدو سره دغه مفرده کلمه پر | <br><br><br><br><br><br><br><br><br>زده کوونکي مفردې کلمې جمع مؤنث سالم |

| | | |
|---|---|---|
| | جمع مؤنث سالم اړوي. لکه: طالبة – طالبات ، مؤمنة – مؤمنات.<br>– ښوونکی پاتې مثالونه هم د ورکړل شوي مثال مطابق پر زده کوونکو حلوي او دوی ته لارښوونه کوي چې مفردې کلمې د (الف او تا) په زیاتیدو سره جمع مؤنث سالم ته واړوي.<br>– ښوونکی د پنځم تمرین جملې چې هدف ترېنه په عربي کې د وخت او ساعت د پوښتنې ځواب ورکول دي ، زده کوونکو ته لولي او معنا کوي، بیا همدغه کلمې پر دوی څو وارې تکراروي تر څو په عربي ژبه د ځواب ورکولو جوګه شي.<br>– ښوونکی د شپږم تمرین دوه مثالونه چې د شمیرو په حروفو لیکل دي زده کوونکو ته د نمونې په توګه د تختې پر مخ لیکي ، لکه:<br>۴۵: ۱۲ الساعة الآن الواحدةُ اِلّاالربع.<br>(۱۵: ۱) الساعة الآن الواحدة و الربع.<br>– پاتې مثالونه هم پر زده کوونکو کاروي.<br>– ښوونکی د اووم تمرین جملې زده کوونکو ته لولي او معنا کوي، وروسته یې پر دوی تکراروي.<br>– ښوونکی د اتم تمرین یو مثال چې په جمله کې د (اِلاّ) تکرار دی د نمونې په توګه زده کوونکو ته حلوي: لکه: االساعة الآن الثانیة اِلا الربع.<br>– پاتې مثالونه هم پر زده کوونکو د تختې پر مخ حلوي ، له دوی سره مرسته او همکارې کوي.<br>– ښوونکی په لسم تمرین پورې اړوند لغاتو نه د تختې پر مخ لیکي او معنا کوي ، وروسته بیا یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي، لارښوونه ورته کوي چې دغه کلمې په لوړ غږ سره ولولي تر څو پاتې زده کوونکی یې تر شا تکرار کړي ، همدا راز زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې له معنا سره یې په خپلو کتابچو کې ولیکي: کلمې عبارت دي له:<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لاندې کلمې ولیکي:<br>الربع: څلورمه برخه:۱/۴ الثلث: ۱/۳دریمه برخه (شل دقیقې). بعد الظهر: د ماسپښین نه وروسته. الا الربع: پاو کم. النصفُ: نیمایي. بضع: څو قبل الظهر: له غرمې نه مخکې. الا الثلث: شل دقیقې کم. و الربع: څلورمه برخه (پاو) پنځلس دقیقې. و الثلثُ: شل دقیقې. | ته اړوي.<br>سورة – سورات.<br>تلمیذة – تلمیذات.<br>کاتبة – کاتبات.<br>مجاهدة – مجاهدات.<br>مدرسة – مدرسات.<br>زده کوونکی جملې جوړوي:<br>الساعة الآن الثالثةُ اِلا بضع دقایق.<br>– الساعة الآن الرابعة اِلاّ الربع.<br>– الساعة الآن الخامسةُ اِلاّ الثلثُ.<br>زده کوونکي د لغاتو زیرمه له تکرارولو نه وروسته په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>؛ |
| **کورنۍ دنده**<br>ښوونکی د ورکړل شوي کورنۍ وظیفې نه پرته نهم تمرین هم زده کونکو ته کورنۍ وظیفه ورکوي. | | |

## لوست: څلور ویشتم (لومړی برخه)

**عنوان:** قصة جحا مع الناس.

**مخ:** ۱۰۷ – ۱۰۸

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

– د درس متن سم ولوستلای شي.

– د نویو کلمو معناوې زده کړي.

– زده کوونکي مثنی وپیژني.

**لازمي لارښوونې:**

**د کلمو معنا:**

جحا: په عربې ژبه کې د ملا نصر الدین معادل دی. ارکبُ: سپریږم.

رکب: سپور شو. الحمار: خر. یرکضُ: په منډه تګ. قابلها: دوی سره مخ شو. الغلام: ماشوم. وراءه: شاته یې.

وا عجباً: څومره د تعجب وړ ده. أکتافنا: زمونږ وړې.

**د تدریس لارې:** نمونه یې لوست ، مناقشه ، سوال او ځواب ، تکرار ، ځان ته.

**د تدریس مرستندویه توکي:** درسي کتاب ، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې مقدمه | – ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او تولګي له برابرولو د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>– څوک دا جمله په عربي ژبه ویلی شي ؟<br>ساعت اته بجې دي.<br>د نوي درس د انګیزې پیدا کولو لپاره پوښتنې کوي:<br>– څوک ویلی شي چې (ساده زړې) انسان ته په عربې کې څه وایې ؟ | |
| ۳۰ دقیقې | دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی له ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان (قصة الجحا مع الناس) د تختې پر مخ لیکي ، زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیر کوي او نوی لوست د لوی الله جل جلاله په نامه سره پیلوي.<br>– ښوونکی لمړی د درس متن په لوړ آواز سره لولي ، وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د درس متن په چوپتیا سره ولولي ، بیا درو نورو زده کوونکو ته وایې چې درس په لوړ آواز سره ولولي ، په پای کې دی یو ځل بیا درس متن لولي او بیا یې معنا کوي. | |
| ۱۰ دقیقې | – ښوونکی د لومړي تمرین پوښتنې له زده کوونکي نه پوښتي او دوی ته لارښوونه کوي چې د درس له متن په استفادې ورته ځوابونه ومومې. | |

| | | |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>**– څوک د درس متن سم لوستی شي ؟**<br>**– څوک د دغو کلمو معناوې کولی شي (جحا ، رکب ، حمار) ؟**<br>**– څوک دغه کلمې (ځي ، مخامخ شول ، سپور شو) په عربي معنا کولی شي ؟**<br><br>**د درس پيغام:**<br>**ښوونکی باید زده کوونکي وپوهوي چې حق و پیژني او له هغه پیروي وکړي ، او په دې لار کې د خلکو خبرو ته غوږ کیږدي ، لکه چې هم که د خلکو خبرو ته غوږ ونیسو او ټول کارونه د خلکو په خوښه تر سره کړو مقصود او هدف ته نشو رسیدلی.**<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>**– ښوونکی دویم او دریم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.** | |

## لوست: څلور ويشتم (دويمه برخه).

**عنوان:** قصة جحا مع الناس.

**مخ:** ۱۰۹ – ۱۱۲.

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**د تدريس موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

– مثنى و پيژني.

– مفردې کلمې مثنى ته واړولې شي.

– مثنى له جملو څخه راوويستل شي.

**اضافي معلومات:**

مثنى: هغه معرب اسم دى چې پر دوو هغه مفردو اسمونو دلالت کوي چې په لفظ او معنا کې سره ورته وي ، مثنى د رفع په حالت کې د (الف او نون مکسور)، د نصب او جر په حالتونو کې د (ياء او نون ما قبل مفتوح په زياتولو سره منځ ته راځي.لکه: تلميذان ، کتابان. جاء تلميذان ، رأيتُ تلميذين ، مررتُ بالتلميذين

د مثنى علامه (الف او نون) او (ياء او نون) دي يعنې په (الف) مرفوع او په يا سره منصوب او مجرور کيږي ، لکه: مدرس: مدرسين.

**د کلمو معنا:**

الكرةُ: پنډوسکه (توپ). الطائرةُ: الوتکه. المقعدُ: چوکۍ. العجوزُ: سپين سرې ښځه. وراء: شا ته. الحرُّ: گرم. الطقسُ: موسم . والد: پلار. الغلام. وړوکی ماشوم.

**د تدريس لارې:** مناقشة ، سوال او ځواب ، ځان ته ، تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکي:** درسي کتاب ، تخته او تباشير.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده وونکوفعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي ؟<br>(وا عجباً  شخصان رکبا علی هذا الحمار الضعیف)<br>ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیر کوي، او نوی لوست د لوی الله جل جلاله په نامه سره پیلوي. | |
| | **دلوست وړاندې کول:** | |
| ۳۰<br>دقیقې | لومړی د مثنی په اړه دوی ته معلومات ورکوي. د هغې د جوړولو لارې ورته ښايي او دا ورته ښکاره کوي چې په جملو کې د مختلفو عواملو په راتلو سره د مثنی په اِعراب کې څه بدلون راځي، بیا د څلورم تمرین یو مثال د بیلګې په توګه دوی ته وړاندې کوي ، لکه: ذهب التلمیذان اِلی المدرسةِ.<br>په دې جمله کې (التلمیذان) منتی واقع شوی.<br>– ښوونکی د نمونې په توګه د څلورم تمرین دوه مثالونه د تختې پر مخ لیکي او مثنی او فاعل زده کوونکو ته په جملو کې ښايي لکه:<br>أکل الطفلان الطعامَ – أکلتِ الطفلتان الطعامَ.<br>په پورتنیو مثالونو کې (الطفلان ، ا لطفلتان) فاعل مثنی واقع شوی دی په دې جملو کې (الطفلان أکلا الطعامَ) الطفلتان أکلا الطعامَ)<br>د فعل آخر الف (أکلا) فاعل واقع شوی.<br>– د تمرین پاتې مثالونه هم ښوونکی زده کوونکو ته د تختې پر مخ لیکي بیا دوی ته لارښوونه کوي چې فعلیه جمله د ورکړل شوي مثال نه په اِستفادې اسمیه جملو ته واړوي او مثنی او فاعل یې په نښه کړي.<br>ښوونکی دوی هڅوي اومرسته ورسره کوي. | زده کوونکي فعلیه جملې اِسمیه جملو ته اړوي:<br>– الولدان لعبا بالکرةِ<br>– المسافران رکبا الطائرةِ.<br>– التلمیذان درسا الخط.<br>– الصدیقتان جلستا علی المقعدِ.<br>– المریضان شربا الدواء. |
| | – ښوونکی د پنځم تمرین دوې کلمې د تختې پر مخ په جملو کې اِستعمالوي:<br>– القریةُ: نحنُ في القریةِ.<br>– الزمان: علینا أن نستفید من الزمان.<br>– العجوزُ: رأیتُ رجلاً عجوزاً في السوقِ.<br>– هغه  جملې پر دوی تکراروي او لارښوونه ورته کوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>– ښوونکی په شپږم تمرین کې د دوو کلمو ضد د تختې پر مخ لیکي لکه رکبَ<br>– نزلَ    الشیخُ: الشابُ.<br>او د تمرین پاتې مثالونه پر زده کوونکو حلوي. | زده کوونکي د تمرین کلمې په جملو کې کاروي:<br>– تمیم یرکب الحصان.<br>– هو یترکُ سوء الأدبِ.<br>– الحمارُ یرکضُ في الطریقِ. |
| | – ښوونکی د اووم تمرین کلمې زده کوونکو ته لولي ، معنا کوي او بیا د هغوی | زده کوونکي د کلمو |

| | | |
|---|---|---|
| | مترادفې (ورته) کلمې د تختې پر مخ دوی ته لیکي . لکه:<br>ذهبَ – مشی.<br>ابن – الولد.<br>ښوونکی بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د پاتې دوو کلمو مترادفې هم د درس له متن نه پیدا او د ورکړل شویو کلمو تر مخ دې پر تخته ولیکي.<br>– ښوونکی د اتم تمرین عبارتونه زده کوونکو ته لولي ، معنا کوي یې، بیا پر ځو زده کوونکو تکراروي ، همدا رنګه په یاد شوي تمرین کې د ځو کلمو ضد هم دوی ته ښایې.<br>– ښوونکی د لسم تمرین کلمې د تختې پر مخ لیکي او معنا کوي ، بیا یو زده کوونکی د تختې مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي تر ځو لیکل شوي کلمې په لوړ آواز سره ولولي او پاتې زده کوونکي دې یې تر شا تکرار کړي.<br>– ښوونکی همدا راز دوی ته لارښوونه کوي چې لیکل شوي کلمې دې له معناوو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښوونکی لاندې کلمې پر زده کوونکو معنا کوي:<br>الحصانُ: آس. الطفلُ ماشوم. الدهشةُ: بیم او ډار. نادر: کله کله.<br>الحیرةُ: حیرانتیا. التعجبُ: تعجب کول. هیښ.<br>الشابُ: ځوان. السمین: چاغ. الغریبُ: مسافر. الاِستغراب: تعجب کې لویدل.<br><br>**کورنۍ دنده**<br>– ښوونکی د کتاب د کورنۍ دندې نه علاوه نهم تمرین هم زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي | ضد لیکي:<br>الضعیفُ<br>الکبیرُ.<br>أمام.<br>البردُ.<br><br><br>زده کوونکي دکلمو مترادف لیکي:<br>والد – الأبُ.<br>الطقسُ: الجو. |

## **لوست: پنځه ویشتم (لومړی برخه).**

**عنوان:** المدرسةُ العالميةُ.

**مخ:** ۱۱۳ – ۱۱۴

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**د تدريس موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د درس متن ولوستلای شي.
- نوي کلمې معنا کړای شي.
- پوښتنو ته ځوابونه وويلی شي.

**اضافي معلومات:**

**د کلمو معنا:**

العالميةُ: نړيوال. الجنسيات: نژادونه. زملاء: ملګري هم ټولګي. الغداء: د غرمې ډوډۍ. رحَّب: ښه راغلاست يې وويل. التحقَ: داخل شو.

أمثل: استازي توب کوم. أعدّ: تيار يې کړ. يدعو: بلنه يې ورکړه.

أما: خو.

**د تدريس لارې چارې:** مناقشه ، نمونه يې لوست ، سوال او ځواب ، ځان ته ، تکرار.

**د تدريس مرستندويه توکي:** درسي کتاب ، تخته او تباشير.

**د درس بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده وونکوفعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | – ښاغلی ښوونکی له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>– څوک دغه کلمې (تلميذ ، مدرسة ، کتاب ، ولد ، صديق) مثنی ته اړولی شي ؟<br>– د نوي درس د انګيزې پيدا کولو لپاره پوښتنې مطرح کوي:<br>– څوک ويلی شي چې (نړيوال مکتب) ته په عربي څه وايي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکی له ځواب موندلو نه وروسته د نوي لوست عنوان (المدرسةُ العالميةُ) د تختې پر مخ ليکي، زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځير کوی او نوی لوست د لوی الله جل جلاله په نامه سره پيلوي.<br>– ښوونکی لومړی د درس متنی په لوړ آواز سره لولي، زده کوونکو ته هم لارښوونه کوي چې د درس متن يو ځل په چوپتيا سره ولولي، بيا وروسته درس په څو زده کوونکو هم په لوړ آواز سره لولي او معنا کوي يې.<br>– ښوونکی د لومړي تمرين پوښتنې له زده کوونکو پوښتې او لارښوونه ورته کوي چې د درس له متن په استفادې ورته ځوابونه ومومي. | |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | – ښوونکی د دریم تمرین یوه کلمه د نمونې په توګه جمعې ته اړوي، لکـــه المدرسة: المدارسُ.<br>هغه بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تمرین پاتې کلمې هم جمعې ته واړوي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د درس متن سم لوستلی او معنا کولی شي ؟<br>– څوک د دغو کلمو معناوې کولی شي.<br>(الجنسیات ، الغذاءُ ، العالمیةُ).<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي ؟<br>( و لما علم أبوه بنجاح اِبنه فرح فرحاً شدیداً).<br><br>**کورنۍ دنده**<br>ښوونکی دویم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ وظیفه ورکوي<br><br>**د درس پیغام :**<br>زده کوونکی باید پر دې پوه شي چې هر یو حالت د خلکو استازی دی، نو ځکه باید کوښښ وکړي چې د هغوی عزت او آبرو وساتي. | زده کـــوونکي مفـــردې کلمې جمعي ته اړوي:<br>الامتحاناتُ.<br>الأیامُ.<br>الأبوابُ. |

## لوست: پنځه ویشتم (دویمه برخه).

**عنوان:** المدرسةُ العالميةُ.

**مخ:** ۱۱۴ – ۱۱۶.

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**د تدریس موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د نسبت معنا وپیژني.
- نسبت په جملو کې اِستعمال کړای شي.
- نسبت له جملو راوویستل شي.

**اضافي معلومات:**

نسبت: د صرف په علم کې نسبت عبارت له دې څخه دی چې د یو اسم په آخر کې (مشدده یاء) چې ما قبل یې مکسور وي د دې لپاره راوړل کیږي، چې په بل څیز پورې وتړل شي ، لکه: باکستان – باکستانی. بیروت: بیروتی. فاطمةُ: فاطمي. ایران: ایرانی. افغانستان: افغانی.

- هغه کلمه چې (یا) ورسره تړل کیږي د (منسوب) په نامه یادیږي. لکه: بیروتي – ایراني – باکستاني او داسې نور.
- او کومې کلمې چې هغې ته نسبت او تړاو ورکول کیږي د منسوب اِلیه په نامه یادیږدي ، لکه: بیروت ، باکستان ، فاطمة ، ایران ، أفغانستان.

**د کلمو معنا:**

أجتهدُ: کوښښ کوم. المائدةُ: دسترخوان. بطیخ: هندوانه. مشمش: زرد آلو. شمام: خټکی. خوخ. شفتالو. نام: ویده شو.

**د تدریس لارې:** مناقشه ، سوال او ځواب ، ځان ته ، تکرار.

**د تدریس مرستندویه توکي:** درسي کتاب ، تخته او تباشیر.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولـــو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>– څوک د دغو کلمو (الاِمتحانـــاتُ ، الأیـــامُ ، المـــدارسُ ، الأبوابُ) مفرد ویلی شي ؟<br>دلوست وړاندې کول: | |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیر کوي او نـــوی درس د لوی الله جل جلاله په نامه سره پیلوي او د څلورم تمرین په حل پیل کوي.<br>– ښوونکی دوی ته د تمرین کلمې د تختې پر مخ لیکي او لولي او دوه کلمې په جملو کې ورته اِستعمالوي لکه:<br>– اِجتهدَ التلمیذُ في دروسه.<br>– رحب حامد بزملائه.<br>– ښوونکی پاتې دوې کلمې پر زده کوونکو کار کوي او یو زده | زده کوونکی کلمې په جملـــو کـــې اِستعمالوي<br>– جلست علی المائدةِ.<br>زینب طالبة مصریة. |

| | | |
|---|---|---|
| زده کوونکي د اووم تمـرين پـاتې مثالونه داسې حلوي:<br>– علي كابلي.<br>– فاطمةُ تلميذة باكستانية<br>– بطيخ هلمندي.<br>– مشمش غوربندي.<br>– شمام بغلاني.<br>– خوخ صيني. | کوونکی د تختې مخې ته راغواړي او لاربنوونه ورته کوي چې د تختې د مخ کلمې و لولي او پاتي دې ورسره تکرار کړي.<br>– ښوونکی د (نسبت) په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي او د پنځم تمرين د مثال نه په اِستفادې ورته يو مثال وړانـــدي کوي.<br>پر دوی تکرار ليکي، بيا په هره جمله کې ورته نسبت او (يـــاء نسبت) ښايي ، لکه:<br>– هذا تلميذ ماليزي.<br>– هذه تلميذة ايرانية.<br>– په پورتنيو مثالونو کې (ماليزي) (ايرانية) منسوب اِلیــه او د (تلميذة) کلمې منسوب واقع شوي. يا په بل عبارت (تلميـــذ و تلميذة) موصوف او (ماليزي او اِيرانية) د هغوی صفت دی لـــه دې امله کله چې موصوف مذکر وي نو صفت يې مذکر راځي.<br>– ښوونکی د شپږم تمرين دوه مثاله چې په خالي ځايونو کې د مناسبو اسمونو ايښودل دي د تختې پر مخ دوی ته حلــوي او دوی ته لاربنوونه کوي که چيري د ياء نسبتي اسم نه مخکـــي اسم مذکر وي نو راتلوونکی اسم د ياء نسبت) لرونکی اسم به هم مذکر وي او که چيرې مخکينی اسم مؤنث وي نو راتلونکی اسم به هم مؤنث وي ، لکه.<br>– رجل هندي.<br>– امراة هندية.<br>پاتې مثالونه هم دوی ته د تختې پر مخ حلوي.<br>ښوونکی د اووم تمرين دوه مثالونه د نمونې په توگه زده کوونکو ته حلوي ، لکه:<br>–جعفر طالب اِيراني.<br>– تفاح وردکي.<br>ښوونکی د تمرين پاتې مثالونه هم پر زده کوونکو د تختې پر مخ کاروي او لاربنوونه ورته کوي چې د تمرين په خالي ځايونو کې د هيوادونو او يا هم د هيواد د ولايتونو نومونه په داسې حال کې وليکي چې تر آخره يې (مشدده ياء) نښتې وي .<br>– ښوونکی د اتم تمرين د حل لپاره شپږ تنه زده کوونکي غوره کوي او دوی ته لاربنوونه کوي چې هر يو دې په خپـــل وار د ټولگي مخې ته راشي او د کتاب د ورکړل شوي مثال نه دې په اِستفادي يو يو مثال د تختې پر مخ حل کړي ، ښـــوونکی دوی | |

| | | |
|---|---|---|
| | هڅوي او مرسته ورسره کوي.<br>– ښوونکی د نهم تمرين کلمې د تختې پر مخ ليکـــي او معنـــا کوي ، بيا يو زده کوونکي ته لارښوونه کوي چې يادې کلمـــې دې په لوړ آواز سره ولولي او پاتې زده کوونکي يې تـــر شـــا تکراروي.<br>ښاغلی ښوونکی لاندې کلمې پر زده کوونکو معنا کوي:<br>مرحبا: ښه راغلاست. أهلاً و سهلاً: ښه راغلاست.<br>جاهز: تيار. نورت بيتنا: کور دې زمونږ روښانه کړ.<br>شرفتنا: مونږ دې عزتمند کړو. تفضل: مهرباني وکړي.<br>هنيئاً: مبارک دې شه.<br>همدا راز دوی ته لارښوونه کوي چې کلمې له معناوو سره پـــه خپلو کتابچو کې وليکي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی (الواجب المنزلي) زده کوونکو تـــه کـــورنۍ دنـــده ورکوي او د حل کولو لارې يې ورته ښايي. | زده کوونکي جملې جوړوي:<br>– دعاهم اِلى الخروج.<br>– دعاهم اِلى الكتابة.<br>– دعاهم اِلى النوم.<br>– دعاهم اِلى الجلوس.<br>– دعاهم اِلى الشرب.<br>– دعاهم اِلى القراءةِ.<br>زده کوونکي کلمې تکراروي. |

## شپږ ویشتم لوست (لومړۍ برخه)

**عنوان:** المؤمن مرآة المؤمن

**مخ:** ۱۱۷-۱۱۹

**وخت:** ۴۵ دقیقې(یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- د درس متن سم ولوستلای شي.
- د فعل مضارع مثنی صیغې باید وپیژني
- د تمرین پوښتنې ځواب کړای شي
- د دوستۍ او ملګرتیا سمې معناوې وپیژني

**اضافي معلومات:**

**د کلمو معنا:**

ثانویة: لیسه السکن: لیلیه(د خوب ځای) یتثاقل: ستی

یبیتان: شپه تیروی صاحبا: ملګرتیا یې وکړه مرآة: هنداره، آیینه

تواظب: پابندی وفي: باوفا لن أهمل: هیڅکله به بی غوری نه کوم.

**د تدریس لارې چارې:** نمونه یې لوست، مناقشه، سوال او ځواب، ځان ته او ډلیز د تدریس مرستندویه توکې: درسي کتاب، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | - ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي له برابرولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>- څوک په لاندې جملو کې نسبت په نښه کولې شي؟<br>جملية مصرية.<br>تلميذ عراقي.<br>تلميذة يابانية.<br>د نوي لوست د انګیزې د پیدا کولولپاره پوښتنې مطرح کوي:<br>- څوک ویلی شي چې عربي کې (آیینې) ته څه وایي؟ | |
| ۳۰ دقیقې | **دلوست وړاندې کول:**<br>- ښوونکي له ځواب موندلو څخه وروسته د نوي لوست عنوان (المؤمن مرآة المؤمن) د تختې پرمخ لیکي، زده کوونکي خپلـــو کتابونو ته ځیر کوي او نوي لوست د لوي الله جل جلاله په نامـــه سره پیلوي.<br>- ښوونکی لومړی لوست په لوړ آواز سره لولي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته په چوپتیا سره وګـــوري، وروسته یې پر څو زده کوونکو په لوړ آواز سره لوست لولي، پـــه | زده کوونکي د لوست متن په چوپتیا لولئ |

| وخت | د ښوونکي او زده کوونکو فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
|  | پای کې ښوونکي یو ځل بیا لوست په لوړ آواز سره لولي او بیا یې معنا کوي.<br>– ښوونکی له زده کوونکو څخه د لومړي تمرین اړوند پوښـــتنې کوي، دوی ته لارښوونه کوي چې د کتاب له متن نه په استفادې سره ورته ځوابونه ومومي.<br>– ښوونکی د دویم تمرین جملې پر تختې لیکي او له څلورو زده کوونکو څخه په وار غواړي چې هر یو د سمې جملې مخې ته (√) علامه او غلطې جملې مخې تـــه (x) کیـــږدي، ښـــوونکي دوی هڅوی او مرسته ور سره کوي. | زده کوونکي د لومړی تمرین پوښتنو ته ځوابونه وایي |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک د لوست څلور کرښې لوستلی او معنا کولی شي؟<br>– څوک دا جمله معنا کولی شي؟<br>(الوقت کالسیف ان لم تقطعه قطعک)<br>– څوک دا جمله عربي ته اړولی شي:<br>(عثمان د حمید نصیحت ونه مانه)<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکي دریم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او ورته لارښوونه کوي چې تش ځایونه د ورکړل شوو کلمو په واســـطه ډک کړي.<br><br>**د لوست پیغام:**<br>زده کوونکي باید د دوستي او ملګرتیا په راز او معنا پوه شي او په خپل منځ کې یې د دوستۍ باور پیاوړی شي. |  |

## شپږ ویشتم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** المؤمن مرآة المؤمن

**مخ:** ۱۲۰-۱۲۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې(یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

- د فعل مضارع مثنی صیغه وپیژني.
- د فعل مضارع مثنی صیغې له جملو راوویستلای شي.
- د فعل مضارع مثنی صیغې په جملو کې استعمال کړای شي.
- د فعل مضارع مفرد صیغه په مثنی واړولې شي.

**اضافي معلومات:**

د مضارع فعل هم لکه د ماضي فعل په څیرد څوار لسو صیغو لرونکي دی، شپږ صیغې د غایب مذکر او مؤنث لپاره (مفرد، تثنیه او جمعې حالتونو کې)، شپږ صیغې د مذکر او مؤنث مخاطب لپاره (مفرد، تثنیه او جمعې حالتونو کې) او دوه صیغې د متکلم لپاره (د مفرد او جمعې حالتونو) کې.

د مضارع فعل صیغې د ماضي فعل له صیغو څخه جوړېږي

د مضارع فعل غایبي صیغې په لاندې ډول دي:

غایب مذکر: یذهب- یذهبان، یذهبون

غایب مؤنث: تذهب- تذهبان، یذهبن

مخاطب مذکر: تذهب، تذهبان، تذهبون

مخاطب مؤنث: تذهبین، تذهبان، تذهبن

متکلم: أذهب، نذهب.

**د کلمو معنا:**

نسیت: له یاد دې وویستو جئنا: راغلو أرجو: امید لرم

الفصل: ټولګي.

**د تدرس لارې:** مناقشه، ډله ییز، سوال او ځواب، ځان ته، تکرار

**د تدریس مرستندویه توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | - ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي لـــه برابرولـــو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>- څوک ددې کلمې معنا کولی شي؟<br>(یتثاقل، ثانویة، أصدقاء السوء)<br>- ښاغلي ښوونکي د لوست عنوان (المؤمن مرآة المؤمن) د تختې پرمخ لیکي، زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځیر کـــوي او نـــوي لوست د لوی الله (ج) په نامه سره پیلوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۰دقيقې | دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکي زده کوونکي په دوو ډلو ويشي، او دوی ته لارښوونه کوي چې هره ډله دې د څلورم تمرين بې ترتيبه کلمو څخه جملې جوړې کړي، بيا د هر گروپ استازې د ټولگي مخې ته راغواړي او جوړې کړي جملې د تختې پرمخ ليکي. ښوونکي د دوی غلطي سموي مرسته ور سره کوي او هڅوي يې.<br>په پای کې ښوونکي د زده کوونکو ترمنځ د مسابقې پايله يا نتيجه اعلانوي.<br>– ښوونکي د پنځم تمرين دوه مثاله د نمونې په توگه زده کوونکو ته د تختې پرمخ ليکي:<br>– انتقل إلى الصف الثامن<br>– المدرسة الجديدة كبيرة<br>– پاتې مثالونه پر زده کوونکو د تختې پرمخ حلوي، مرسته او هڅوي يې. | زده کوونکي نامرتبو کلمو څخه جملې ترتيبوي<br>– هل نسيت الهدف الأساسى؟<br>– أنا لم أتغير.<br>– ما جئنا لنلعب و نضيع الوقت.<br>– أرجوا ان تواظب على الصلاة.<br>أباؤ نا يأملون فينا كل خير.<br>– يا حميد أنت صديق وفى.<br>زده کوونکي جملې جوړې:<br>– تثاقل عن صلاته<br>– أحسن أنه مريض<br>– هل نسيت الهدف الأساسى |
| ۱۰دقيقې | – ښوونکي د مضارع فعل او د هغې د صيغو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي، بيا د شپږم تمرين جملې د تختې پرمخ ليکي، لولي او معنا کوي، بيا د مضارع فعل مثنى صيغې دوی ته په جملو کې ښايي تر څو په دې اړه ښه پوه شي.<br>د ياد شوي تمرين مضارع فعل صيغې په لاندې ډول دي:<br>– يسكنان<br>– يدرسان<br>– يرجعان<br>– يبيتان<br>– ښوونکي د اووم تمرين د جملو خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډکوي او پر تخته يې ليکي، بيا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې پاتې مثالونه هم لکه د تيرو مثالونو په څير په خپلو کتابچو کې حل کړي، لکه:<br>– محمد و على (يذهبان) إلى المدرسة<br>– فاطمة و خديجة (تسكنان) في مدينة كابل<br>– اسحاق و موسى (يدرسان) في جامعة أم القرى<br>– ښوونکي د نهم تمرين خالي جملې په مناسبو کلمو ډکوي او د تختې پرمخ يې ليکي، لکه:<br>– بعد انتهاء (كتابة الواجب) قام وصلى<br>– بعد انتهاء (الغسل) لبث ثو با جديدا | زده کوونکي د تمرين جملې په مناسبو کلمو ډکوي:<br>– مريم و عائيشه (تزوران) جدتهما<br>– حميرا و شكيلا (تكتبان) الدرس فى الفصل<br>– جميل و كبير (يسافران) إلي مكة المكرمة |

| | | |
|---|---|---|
| | ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تمرین پاتې جملې په خپلو کتابچو او یا یې د پنسل په واسطه په کتاب کې حل کړي.<br>– ښوونکي د لسم تمرین کلمې د تختې پرمخ لیکي، معنا کــوي یې، تکراروي، هغه بیا دوی ته لارښوونه کوي چې کلمې یې لـــه معنا وو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښوونکي پر زده کوونکو لاندې کلمې معنا کوي:<br>رفیقان: دوه دوستان<br>زمیلان: دوه هم ټولګیان او دوستان<br>اهمال: سستي کول<br>غفلة: بي پروایي<br>فرائض: فرضونه<br>حمیم: نژدی دوست<br>عزیز: ګران<br>زملاء: هم ټولګي<br>محب: دوست<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکي (الواجب المنزلی) زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | ۱۰ دقیقې |

## اوه ويشتم لوست (لومړۍ برخه)

**عنوان:** في الدكان

**مخ:** ۱۲۳-۱۲۴

**وخت:** ۴۵ دقيقې(يو درسي ساعت)

**د تدريس موخې:** زده کوونکي بايد:

- د لوست متن سم ولوستلای شي.
- نوي کلمې يادې کړای شي.
- په عربي ژبه شمېرې وويلی شي.
- پوښتنو ته ځوابونه وويلې شي.

**اضافي معلومات:**

**د کلمو معنا:**

في الدكان: په دوکان کې

الجائع: وږی

لابأس: پروا نه کوي

الاخوة: ورونه

الحزام: کمربند

أعطني: راېې کړه

لوسمحت: که اجازه مو وي

**د تدريس لارې چارې:** نمونه يې لوست، مناقشه، سوال او ځواب، ځان ته.

**د تدريس مرستندويه توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشير

د درس بهير

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې مقدمه | - ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي لـــه برابرولـــو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>- څوک کولی شي چې دغه مفرد مضارع فعلونه مثني ته واړولی شي(يسكن، يدرس، يرجع)؟<br>- د نوي لوست د انګيزې د پيدا کولوپوښتنې مطرح کوي:<br>- څوک ويلې شي، چې مونږ د خپل ضرورت توکي له کومه ځايه اخلو؟ | |
| ۳۰ دقيقې | - **دلوست وړاندې کول:**<br>- ښوونکي له ځواب موندلو څخه وروسته، د نوي لوست عنوان (في الدكان) د تختې پرمخ ليکي، او زده کوونکي خپلو کتابونو ته ځير کوي، او نوی لوست د الله جلاجلاله په نامه سره پيلوي.<br>- ښوونکي لومړی په لوړ آواز د لوست متن لولي او زده کوونکو | |

|  | **زده کړه** | **وخت** |
|---|---|---|
|  | ته لارښوونه کوي، تر څو په چوپتیا خپل کتابونه وګوري، بیا پــر څو زده کوونکو په لوړ آواز سره لوست لولي. او په پای کې یـــو ځل بیا ښوونکي د لوست متن لولي او معنا کوي یـــې، او د دوی مشکلاتو ته ځواب وایي.<br>– ښوونکي پر څو زده کوونکو لوست د محاورې (خبرو او اترو) په ډول داسې تر سره کوي چې لـــومړی د نـــصیر او دویـــم د پلورونکي رول تر سره کوي.<br>– ښوونکي د لوست لومړی تمرین له زده کوونکو پوښتي او دوی ته لارښوونه کوي تر څو د متن نه په اســـتفادې ورتـــه ځوابونـــه ومومي. | **۳۰دقیقې** |
|  | **ارزونه:**<br>څوک د لوست متن سم لوستلای شي؟<br>څوک دا جمله (لو سمحت کم قیمة الکراسة الواحدة) معنا کولی شي؟<br>څوک ددغو کلمو (لابأس، حزمة، بائع) معنا کولې شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکي دوهم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.<br>**د لوست پیغام:**<br>زده کوونکي دې د اخیستلو او خرڅولو په ادابـــو لـــه اســـلامي تعلیماتو سره سم پوه شي. | **۱۰دقیقې** |

## اوه ویشتم لوست (دویمه برخه)

**عنوان:** في الدکان

**مخ:** ۱۲۵–۱۲۸

**وخت:** ۴۵ دقیقې(یو درسي ساعت)

**د تدریس موخې:** زده کوونکي باید:

– عدد او معدود وپیژني.

– د عدد او معدود ترمنځ توپیر او فرق وکولای شي.

– عدد او معدود په جملو کې استعمال کړای شي.

**اضافي معلومات:**

عدد پر دوه ډوله دی: اصلي شمېره او ترتیبي شمېره.

أصلي عدد: هغه عدد دی چې پر اندازه او د شیانو په شمېرې باندې دلالت وکړي، لکه: یو، دوه، درې، څلور...

ترتیبي عدد: هغه عدد دی چې د شیانو پر مرتبه باندې دلالت کوي، لکه: لومړی، دویم، دریم...

معدود: هغه اسم دی چې له شمېرې څخه وروسته په جمله کې راځي، لکه: نجح ثلاثة طلاب.

په دې جملوکې (طالب) معدود او (ثلاثة) عدد دی، هر کله چې معدود مذکر وي.، عدد به یې مؤنث وي، **لکه:** أربعة اقلام.

له درو نه تر لسو پورې چې کله عدد داسې وي نو معدود به یې جمع او مجرور وي.

**د کلمو معنا:**

دراجات: باسکیلونه

سیارات: موټرونه

**د تدریس لارې:** مناقشه، سوال او ځواب ځان ته او ډله ییز.

**د تدریس مرستندویه توکي:** درسي کتاب، تخته او تباشیر.

**د درس بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br>مقدمه | – ښاغلی ښوونکي له سلام، پوښتنو او ټولګي لــه برابرولــو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تېرلوست ارزونه کوي:<br>– څوک تیر درس سم لوستلای شي؟<br>– دلوست وړاندې کول:<br>– ښوونکي د عدد او معدود او په جملو کې د هغه د استعمال په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي او دوی ته وایي چې عدد او معدود حکم په (یو او دوه) شمېرو کې سره مطابق وي یعنې پــه تذکیر او تانیث کې عدد او معدود مطابقت لري، لکه: قلم واحد، وقلمان اثنان، امراءة واحدة امرأتان اثنتان.<br>– اوله درو نه تر لسو پورې عدد د معدود سره جمع اواعراب کې مخالف دی، لکه: ثلاثة رجا ل، ثلاث بنات(ثلاثة، ثلاث) عددونه دي چې د معدود څخه په تذکیر او تأنیث کې مخالف دي. | |

| ۳۰دقیقې | – ښوونکي د دویم تمرین دوې جملې د نمونې په توګه پر تختـــه لیکي، عدد او معدود زده کوونکو ته ښايي ثلاثة کتـــب – ســـبع دراجات.<br>په پورتنیو مثالونو کې کتاب مذکر اسم دی، چې معدود ګڼل کېږي او عدد یې په خلاف مؤنث راغلې دی، او په بل مثال کې دراجـــة مؤنث اسم دی او په خلاف یې عدد مذکر راغلې.<br>ښوونکی پاتې مثالونه هم زده کوونکو ته د تختې پرمخ لیکي او له دوی غواړي چې په جملو کې عدد او معدود په نښه او ور څخـــه لاندې خط وباسي.<br>ښوونکي د دریم تمرین دوه مثاله د نمونې په توګه پر تخته لیکـــي (۳۰) ثلاثون) (۴۰) أربعون<br>وروسته پاتې مثالونه هم د تختې پرمخ لیکي او دوی ته لارښـــوونه کوي چې شمېرې په حرفونو ولیکي.<br>– ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو د مثا ل مطابق شمېرې (عددونه) په حروفو ولیکي، ښوونکی له دوی سره مرسته کوي.<br>– ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو عددونه د لیکل شوو عددونو سره ونښلوي، ښوونکي له دوی سره مرسته کوي.<br>– ښوونکي د شپږم تمرین، جملې زده کوونکو ته لولي او معنـــا کوي، دوی ته په ادب سره پوښتنې او د هغې ځوابونه ښايي.<br>– لطفاً قلم مو راکړئ مهرباني واخلئ.<br>– وبښئ کتاب مو راکړئ مهرباني واخلئ.<br>– ښوونکي د اووم تمرین جملې زده کوونکو ته لولي، معنا کوي یې، بیا یې پر دوی تکراروياو د نمونې په توګه یې یـــو ځـــواب د تختې پر مخ لیکي.<br>– من فضلک أعطنی کوباً من الماء<br>پاتې مثالونه هم د تختې پرمخ پر دوی حلوي.<br>– ښوونکي د اتم تمرین کلمې د تختې پرمخ لیکي او معنا کـــوي یې، بیا یو زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او لارښـــوونه ورته کوي تر څو دغه کلمې په لوړ آواز سره ولولي، بیا ټول زده کوونکي دده تر شا دغه کلمې تکراروي: | زده کوونکي عددونه پـــه حرفونـــو بدلوي.<br>– (۵۰) خمسون<br>– (۶۰) ستون<br>– (۷۰) سبعون<br>– (۸۰) ثمانون<br>– (۹۰) تسعون<br>– (۱۰۰) مئة<br><br>زده کوونکي د اووم تمرین ځوابونـــه داسې لیکي:<br>– تفضل خذ<br>– من فضلک أرید منک مبلغا<br>– تفضل خذ ماتحتاج |
|---|---|---|

| | | |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>**الرصاص: پنسل**<br>**قلم حبر: خودرنگ قلم**<br>**التقويم: کليزه**<br>**المبراة: قلم تراش**<br>**المداد: سياهی بوتل(مشوانی)**<br>**الممسحة: تخته پاک**<br>**الممحاة: پنسل پاک**<br>**المجلة: مجله**<br>**لاصق: نښلونکی**<br>**الصمغ: سريښ**<br>**الدباسة: استبلر**<br>**الثقابة: سوری کوونکی**<br>**الصحيفة: ورځپاڼه**<br>**الملف: دوسيه**<br>**ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو کلمې له معنـــاوو سره په خپلو کتابچو کې وليکي.**<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>**ښوونکي (الواجب المنزلی) زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.** | **۱۰دقيقې** |